# تړون



د خيبر درې
د شاعرانه غېږې
په
نوم

د خاطر رنګين غزل ته چې اېږم
په دې خم خيبر کښې څۀ دې پلۀ خاورو





# فهرست

( و )







( ه )

چې عاشق د معشوقې په لور کاته کا
خو د لېمه شي کم طاقته په بېواته کا

چې پلو له مخه لرې کړي دنيا شي
لکه ستر که د سبا چې راخاته کا

لږ يې عکس د زړه واخله که دې شک وي
چې دا تور بانړه دې څرنګه ويشته کا

په مئين زړه ځنګدن شي چې يار راشي
په هيبت زړه په ګوګل کښې الوته کا

د خاطر په زړګي داغ د بېلتون ګوره
چې د يار په لور کانړه وانړه کاته کا

چې اشنا يې ستمګر شي نو به څه کا
چې زخمي شوک په ځيګر شي نو به څه کا

چې ټول عمر يې تېر کړے په پالنګ وي
څه چې زمکه يې بستر شي نو به څه کا

چې په عمر کښې يې غم ليدلے نه وي
چې د غم سره يې سر شي نو به څه کا

انتظار چې د وصال په ګوره شپه کړي
د بېلتون چې پرې سحر شي نو به څه کا

کۀ ديدن د يار موندے په ډېر هنر شي
چې غماز د چا رهبر شي نو به څه کا

زۀ خاطر خو هميشه دغسې وايم
چې اشنا يې مرور شي نو به څه کا

کانړی بوټی دی دیار د محمدؐ
ما منلی په دیدار د محمدؐ

ګل نګونه به یې لاړ شی په مخکښې
که چا ونیوله لار د محمدؐ

د دنیا واړه ګلونه به یې هېر شی
که چا ولیده ګلزار د محمدؐ

چې د دې دنیا ژړا او خندا نه وے
نۀ وے شمع په مزار د محمدؐ

د یادونو یې وصال ګڼه خاطره
چې قرار وی یې قرار د محمدؐ





○

زړۀ مې کوی هر وخت دردونه آشنا
لږ خو مې واوره فریادونه آشنا

ترڅو به ژاړم ستا په مینه کښې زۀ
ګوره داوښکو مې سیندونه آشنا

اوس دې لۀ غمه خلاصېدے نشم
ما وې په عشق کښې وی خوندونه آشنا

ښ په جبین کښې دې خالونه څړ دی
دی په چشمانو مې ګردونه آشنا

که ستا په خیال کښې دے اجل ته قریب
د خاطر شته دی ارمانونه آشنا

○

خبر نن کړه در ته ما وکړل تا را وکتل
خو کوم دم به دې بیا کړه دې سبا را وکتل

هم د غمسې ګلونه وو چې مینه جوړه پړه
غنچه وشوه پسرلے دے کړه اشنا را وکتل

دنیا را ته ګوری د کتو نه ووتم
چې تا ته مې کتلي دی هر چا را وکتل

په مخه باندې را غلې مغ دې خله پټوه
کړه غم دې را ته جوړ چې دې په شا را وکتل

دستې مې وخندل هم دا مې وه ارمان
تا چې اے رقیبه په خندا را وکتل

یو دم مې زړه نرے شو لوهم ولو خاندمه
خاطر چې غریو نیولی په ژړا را وکتل

[illegible]



د ستا د حسن تماشې واخستم
ټکه لوګے په سر لمبې واخستم

لاس خو مې را نه کړه د چې مغ پټوی
ګوری یاران مې د غم شپې واخستم
دا در ته سوال کړم چې سوال نشم کړے
وای خاله ته چې ستا اسرې واخستم
سبا مې بیا په زولنو کښې ګوره
نن مې چې فکر د کوڅې واخستم
سم دې د مخ په سبا پوه نه شومه
کله دې د زلفو توری شپې واخستم
کور د ګډوډون را ته یو پوړ بنکاره شو
چې تصور د هدیرې واخستم
بس یاد دې نور مې مه تنګوه
چې را ته مې هم نشي غمې واخستم

خاطره ته او دا دنیا دې پوه شه
نه بس د عشق یوې قصې واخستم

ودایه شم تا نه قربان څه وکړم
نور ددې د پاسه په ځان څه وکړم

ته خو به کمځې د زلفو جوړې کړې
زه په دې شلېدلي ګرېوان څه وکړم
ته خو چا ته نه درځې، خو زه بې علم
ش یم ستا په دربنې مهمان، څه وکړم
زه به نور څه نه کړم بس دے سوال کوم
نور خو زما نشته دے توان، څه وکړم
ستا په طمع ځان له پاتې شوے یم
تول خو رانه لاړل یاران، څه وکړم
پوره دې چې په ځان کړم اوس چې نه پرېږدې
بیا به داسې نه کړم سلطان، څه وکړم
چا به د غم ټک ټوټه ندون اخستے وه
بس خو چې پیدا شوم انسان، څه وکړم

اوس خو زه خاطر په څه پوهېږم نه
تاچې کړمه داسې هېران، څه وکړم

باغ د مینې دې د خیال په کښې غنچې کړم
ستا د مغ په تصور کښې تماشې کړم

بل به نه وی یاره ستا غوندې کښې حُسن
شُعله اوږ د خپله لاسه درپسې کړم

ستا د مغ کتاب د زړه په سترګو کوم
په ځان تېرې شپې او بدې راخورې کړم

زه خاطر خو یاره ستا د مغ کتاب ته
بې له تانه په خبر کښې ودځې شپې کړم

زهٔ لکه د موم پهٔ شان دیدار ته اوبهٔ کېږم
پرېږده چې اوبهٔ شم ستا رخسار ته اوبهٔ کېږم

چرته شی خوبونه شپې پرې ستورې محفل جوړ کړي
همدا یې مشغولا شی ستا سپېنګار ته اوبهٔ کېږم

زهٔ پرې بندهٔ پوهېږم ستا لیدل زما اجل دے
بیا یې هم وار نهٔ شی ستا یو وار ته اوبهٔ کېږم

اوس خاطره ولې خدای پهٔ زړهٔ کړم دومره سخت ته
بیا چې پس لهٔ مرګه ستا مزار ته اوبهٔ کېږم



ستا پهٔ اُلفت کښې به هوښیار نهٔ شم
څو چې د عقل نه وزګار نهٔ شم

سود مې د عشق پهٔ لېونتوب نهٔ شی
څو چې رسوا دې پهٔ بار بار نهٔ شم

یار مې وفا دې ماته هله وائی
چې ترې لهٔ سر او ماله زار نهٔ شم

څو چې پهٔ تورو خاورو موړ نهٔ شم
موړ به دې هرمره پهٔ دیدار نهٔ شم

کهٔ د منصور غوندې پهٔ دار شم اشنا
دا ستا لهٔ عشق به توبه ګار نهٔ شم

خاطره! داسې ګذار عشق راکړلو[1]
چې بل ګذار ته به بیدار نهٔ شم

[1] متن او دیوان کښې "راکړو" دے ، چې مصرع پې وزنه کوي



واخلمه تا او کهٔ دنیا واخلم
پهٔ خندا خرنګه ژړا واخلم

لېږي دي پورته کړه د مخ نه زلفي
لېږه سودا چي پهٔ دنیا واخلم

تهٔ چي پهٔ سترګو کښي مسکۍ شوي ګلي
نهٔ دي د دې مینې بلا واخلم

تا ته چي کوم پهٔ دود زړونو کښي شم
یو قدم مخکښي بل پهٔ شا واخلم

مرګ او بېلتون را ته جوړه راغلي
خاطره دا واخلم کهٔ دا واخلم







غوسه چي نه یږم په ځواني پسې زهیږم
خدای زده نهٔ پوهیږم چي ساده شوم که پوهیږم

نهٔ اولهٔ تا تګ دا هسې ګله چرته شوی
دعمره خو پوهیږم چي قدم اخلم ودرېږم
تهٔ او ستا بنایست چي په ما څنګه څنګه کړې شي
مهٔ کوه ایله نن د هرڅهٔ سره جوړیږم
نهٔ یمه خوشحاله ستا په غم کښي خندمهٔ شي
خدای یې پخلا مهٔ کړه چي لهٔ تا ... مرور یږم
شان یې د کړو نهٔ وی خو چي زړهٔ مي شی را پورته
تا ته چي زهٔ سوال کړم د خپل ځان ځني شرمیږم
غوښتهٔ یې هم دا چي را ته وواېي چي درومه
خدای خبر چي بیا دې پهٔ پلوٌ د ربنکاره کېږم
تهٔ کهٔ په یو خلهٔ لهٔ ما خلاصیږي نوري واخله
تهٔ به را ته نهٔ شي کتے څهٔ له خنده کیږم

څکه ما خاطر د رته دا ووې چي یې هر کړه
پرېږده چي یې وا ره په هر ځای کښي د ریادېږم

---

میاشتنۍ «قند» مردان ـ خصوصي ګڼه ۱۰ رکال لېږنمبر (ص ۹۵)

Scanned and pdf copy
by
Fazal Amin

لکه ګلې چې په اغزو کښې وينم
داسې ې زړهٔ ستا په بنهو کښې وينم

رخسار دې وينم تورو زلفو کښې ستا
لکه رڼا چې په تيارو کښې وينم

ګلفامه څو کهٔ لرې اوسې له ما
نهٔ دې د نم په پلوشو کښې وينم

د ستا ليدل تېر شوې خوب وهٔ آشنا
بيا به دا خوب په کومو شپو کښې وينم

اے د صبا ستړې باخبره په ورو
تلهٔ د آشنا دې په خترو کښې وينم

زما خاطر خاطر دې اوږد کښې ويسو
اوس يې لوګے په اسويلو کښې وينم



خوشحالي ستا شوه زهٔ يې نهٔ اَخلمَ
د ستا غمونه واړه زهٔ اخلمَ

تا چې زړهٔ وړهٔ ګواه هم نهٔ لرم
اوس به لهٔ تا نه څنګه زړهٔ اخلمَ

اول سپږمې وم ستا د مينې د اور
اوس په ځان پوره شوم چې لمبه اخلمَ

په وړاندې دې څم په ورو ستو ګورم آشنا
نهٔ قدمونه چې واړهٔ اخلمَ

هر سړے ګرځو ي نه په خاطر دې د غم
په اسويلو کښې چې سا لهٔ اخلمَ

---

له مترلو نه کښې د النظر (ضمير نه) د ے چې صحيح نهٔ دے ۔



په دې دُنيا کښې مسې شپې تېروم
لکه مېلمه يې دوه غرې تېروم

په ما زهير مه شي خو مخ ښکاره کړه
په زړه د ستا د مخ لمبې تېروم

خوشحال ته کوچې غم نه لرې
زړه لېونے يم چې تنګسې تېروم

دا زړه خاطر ستا د خاطر د پاره
په خپل خاطر د غم چپې تېروم







اشناکه تا ته په کتو پوره شوم
نو بس په نورو تماشو پوره شوم

بس خو معلومه شوه چې نه رادرومې
ستا د دروغو په وعدو پوره شوم

يا د ساقي د مې خوند نشته دے
يا زه ايله اوس په نشو پوره شوم

سوے به هم د خاطر زړه وي واسې
زه دې د مخ په سرو لمبو پوره شوم



قسمته راسې دې ودۀ کړم چې بېدار نۀ شوم
بغېر لۀ تا ستا دغمونو نه روزګار نۀ شوم

پۀ دې دنیا کښې به غم ستا لۀ ژونده څۀ ژوندوي
لېونی غوندې ګرځم خو یو ځل پۀ کښې خمار نۀ شوم

ستا پۀ الفت کښې هغه خوب چې ما لیدلے اشنا
د رقیبانو د جرګو څخې ویزار نۀ شوم

تۀ چې راکوې زۀ به هغه وخت پۀ طمع ومه
یو ځل هم مړې د ستا د خُلې پۀ بنه ګفتار نۀ شوم

هغه وعده چې تا پۀ سترګو کښې وه ماته کړې
دا زۀ خاطر دې د وعدې پۀ انتظار نۀ شوم

نور پۀ زړۀ مې نۀ ځائیږي چې څۀ وایم
دا نه بیا مسرورېږي چې څۀ وایم

کۀ څۀ نۀ وایمه هم راپورې ګکي
پۀ دې هم راته قهرېږي چې څۀ وایم

د هر چا پۀ لوری څمه داسې وخت دے
بیا مې وخت کله تېرېږي چې څۀ وایم

کۀ خبره نۀ وي ما ته خپه دے خپه دے
بیا خپل حسن نه خبرېږي چې څۀ وایم

دېره بنه پۀ تا پوهېږمه خاطره
خو بس سترګې مې شرمېږي چې څۀ وایم



ته به کرنګي مسي بنګلې زه به مړ يم
چې يې اوس وګړې لږ ليدلې زه به مړ يم
جنازه يې چې له کوره کړه ته درومې
ته به نه وې راوتلې زه به مړ يم
خداې د پاره په مزار يې چې را درومې
لږ شه ماته پښه نيولې زه به مړ يم
زه به مړ شمه قرارې مرګې ورک شه
سره خاندې به تږل کلې زه به مړ يم
وچې ترږې به په ما وې را زرغوې
وې مزار به يې مبتلې زه به مړ يم
اې اشناچې دې وطن له ته را درومې
څرڅپېږ خو دې ليدلې زه به مړ يم
څرې خاورې به په ما باندې انبار وي
هر سړې به دروي غلې زه به مړ يم

د کاکل په خته بند د مغ کتاب کړه
ما خاطر په خداې سپارلې زه به مړ يم







بنګلې مخ ته دې د موم په شان اوبه يم
لکه کاڼې مسې کلک ور ته په زړه يم

چې په کومه لاره لاړ شې زه يې مل يم
لکه ګرد يې مسې خور په هر يو پله يم

زه په کومو سترګو ځان ته بيمار وايم
چې د ستا نوم اخستې شمه نو ښه يم

ستا ليدل لکه د خوب ليدل دي ياره
په دې خوب پسې لا مفتې وده يم

لږ د ځان سره په زړه کښې فکر وکړه
زه خاطر دې چرې يو ځلې په زړه يم





کوره چې رنګ مې سوے سکور نهٔ یم
طاقت مې نشته ستا د نوو نهٔ یم

راځه د سترګو نه مې مهٔ درېږه
سرې په ژړا دی ځهٔ مخور نهٔ یم

دې اسویلو ته مې تهٔ نهٔ ګورې ځهٔ
سوے پهٔ اور یم سوے لوږ نهٔ یم

ستم کړه تهٔ منع کړے یې چا
زهٔ لا خاطر مړے د ګور نهٔ یم







سپرلیه زهٔ دې پهٔ غُنچو کښې نهٔ یم
عادت پهٔ داسې تماشو کښې نهٔ یم

کهٔ راکوې نو سم شراب را کړه
زهٔ دې ساقي هسې اوبو کښې نهٔ یم

اے خدایه بس ما خپله ورځ ولیده
د داسې ژوند پهٔ تېرېدو کښې نهٔ یم

د ستا بانړهٔ د ستا رخسار پهٔ خاطر
بې د ګلونو پهٔ ازغو کښې نهٔ یم ے

تهٔ ما خاطر ته هسې ست خو وکړه
چې خفه نهٔ شې پهٔ در تلو کښې نهٔ یم



ے متن لمنځه او دیوان کښې دا بیت د غزل ورو دغه بیت دے



ستا د منزل په منزلونو کښې يم
د د سېدو په اميدونو کښې يم

نه مې دنيا نه مې عقبا ګټېږي
دغې سودا او دا فکرونو کښې يم

د ستا رخسار به مې هېر نشي اشنا
که د بهار په سرو ګلونو کښې يم

زما په زړه کښې خو هم ته يې اشنا
دا نه خاطر که د چا زړونو کښې يم









ياره ستا مينې په اور سېځلې يم
دوغ به نشمه په زړه داغلې يم

خودم قسم چې تر هغې پورې ژوندې يم
وږې دې نه په تش ديدن ساتلې يم

همېشه سر په زنګون په غم کښې ناست يم
ياره تا کله خوشحال ليدلې يم

خوار خاطر ولې چې دا کومه ګناه ده
چې له در دې بېنوا شړلې يم





ژوندی کله نهٔ ماړهٔ دی بې لهٔ خاورو
نهٔ ماړهٔ دی نهٔ ساړهٔ دی بې لهٔ خاورو

چا چې خاورې ځان ګڼلې په ژوندون دے
هغه چرته کښې وُدهٔ دی بې لهٔ خاورو

د انسان سره چې غم مل شي نو ګلک شي
دیوال کړے چا اوبهٔ دی بې لهٔ خاورو[۲]

د خاطر رنګین غزل ته حیرانیږم
په دې خر خښېر کښې څهٔ دی بې لهٔ خاورو



---

۱ـ متن لیکنه او دیوان کښې د (لهٔ) په ځای مې چاپ شوې ده (د) لیکل شوی چې صحیح نهٔ دے
۲ـ متن لیکنه او دیوان کښې غلطه مصرعه داسې لیکلې شوې ده :
دیوال کړے چې اوس دے چا لهٔ خاورو .





خوږ به نهٔ ژړېږمه په سره سترګو
تږو تمه ستا په لېونو سترګو

مهٔ توروه تورې بلا سترګې دې
پام چې درته نهٔ شي د سپېرو سترګو

عمر له بې کاره وي د ژړا سره
وهٔ چې ګورې چا ته په معصومو سترګو

بس کړه د خاطر سره پخلا شه ته
خلق ډېر عزت کړي د نهو سترګو



نور به څهٔ یوسي زما په تورو سترګو
زړهٔ دې وړے لا پخوا په تورو سترګو

که پروا کړمه خو زهٔ به دې پروا کړم
نور دې څهٔ کوي پروا د تورو سترګو

وړې سترګې مې د سترګو په هر لور شي
کړم دې داسې وارخطا په تورو سترګو

کړې مې سترګې ستا د سترګو قدر دومره
وربه یې نهٔ کړم د دنیا په تورو سترګو

زهٔ خاطر دې د ګجلو سلائي وے
ښکلولے دې اشنا په تورو سترګو



بیا دې سهي نهٔ کړم په هغو سترګو
یو ځلې هم هغسې په مړو سترګو

نهٔ مې شته په نورو سترګو شک د زړهٔ
بس خو زړهٔ مې غل دے ستا د غلو سترګو
زهٔ یې کړم آشنا لهٔ شوکیرو سره
یو مې پل خوبونه ستا ګډو سترګو
زهٔ یم چې د زړهٔ په سترګو تا وینم
چار نا لیدلې په ړندو سترګو
خپل مې واړه بدرائې په سترګو کښې
ستا د پاره خپل شوم د ړندو سترګو
ستا دې اوښ دو ورو ځو ته حیران یمه
څومره ښکلې ښکارې په دې دو سترګو
خبر دے دا زما سترګې خو بدې شرې
ته خو راته ګوره په دې ښو سترګو

څومره تړنه ورنې دې حیران یمه
سترګې د خاطر ستا لهٔ مړو سترګو
ریډیو پاکستان پېښور (مسودات)



ما د وصال په شپه کښې تورله شپه سحر لیدلو
حال مې د ځان لکه مجنون هسې اوتـــر لیدلو

دریغه چې شپه وه د وصال خو تر قسمته پورې
زۀ په دیدن نۀ مړېدم چې مې دلبر لــــیدلو
بیا د سحر غمونو هله لبرے ګـــړمه زۀ
سرِ ماښام مې نمر اوچت دغرۀ په سر لیدلو۱
نۀ یې لا هیڅ په سرو لبانو باندې نۀ یمه پوره
لا په اسمان مې چې د لمر په ځاې قمر لیدلو
په تصور کښې مې د ځان سره کول فکرونه
په هغه شپه چې به غماز جوړې محشر لیدلو
چې مې را یاد کړل هغه تېر د جدایۍ وختونه
له غمه ډک مې تر هغې پورې اختر لــیدلو

خاطره بس کړه د وصال طمع پیدا شوه د یار
واۍ رېبار چې مې جانان دې مـــرور لیدلو

---

۱ سنز لرنه او دیوان کښې چې مونږ ته لرې معنیٰ مصرع داسې ده:
د ماښام سر سره نمر چې اوچت دغرۀ په سر لیدلو

شوق مې ستا د ډېرو پېغورونو سره لاړلو
زور مې شو اوبه د ستمونو ســــره لاړلو

خوښ مې اننګې شول د ښهو ازغې مې هېر شول
نېږۀ را نه بلبل شو د ګلونو ســره لاړلــو
ډېرې مې کړې ټینګې خو اخر مې اوښکې لاړلې
تاو د محبت د ارمانونو ســـــره لاړلــو
سترګې مې نیولې ستا د مینې په کاروان کښې
لاړلــو نظر مې د ګــردونو سره لاړلــو
زۀ تر ښه لوګے شم چې به څۀ سوے ترې راشي
نېږۀ را نه د یار د دیــدنونو سره لاړلــو
څرنه واسې یار شته لکه زۀ په انتظار یم
ستورے د سبا هم د فکرونو ســره لاړلو
څرنه به زما لېـــونے زړۀ پرې مشغولېږي
ستا د تورو زلفو زنځیرونو سره لاړلو

څو به دې مهار د عشق نیولے وي خاطره
ژوند در څخې هسې د وختونو سره لاړلو

باد شومه د عشق د ګرنګونو په سرونو
په هوتم دلبرې وطنونو په سرونو

د ربغه چې د ستا د اننګو خوله هم نهٔ وي
پرځې نه چې ګوډم د ګلونو په سرونو
ستړې به زما شي اخر غرقې په ژړا کښې
ګرځي چې کشتۍ د ګرداب به په سرونو
مات په ما نظر کړه چې سپهر ستړی حق حېران شي
دود چې کړه د لمبو د محلونو په سرونو
هسې هم ایرې یمه د باد سره الوځم
سکون مې خوله نیسي د زخمونو په سرونو
ځان به خاورې نهٔ کړم غم د یاره کهٔ څو ډېر شي
خاورې دي پرتې وي د تېغونو په سرونو

ښکلي به سر ټیټ کړي یاره ستا په تصور کښې
د هر خاطر ستا د غزلونو په سرونو



څو به سره پټ د وا په په زړهٔ ذره ذره یُو
کهٔ دا دي خوښه نهٔ ده چې هرچا ته دي ښکاره یُو

یو دغه بېلتون دے چې عزت مو په کښې وړے
څو به په کښې وايو چې مدام دي در سره یُو

ته زما په سوي[1] شمعې نهٔ ستا په انتظار کښې
هر کله چې وی نو مړهٔ به د واړه په یو شپه یُو

نهٔ به کله وایو کهٔ دنیا په بله واوړي
ګرځي دي نو د خلق مونږ په خپله تماشه یُو

یوځ به مې سوګند شي په کړو ود څو د یار
اوس به د واړه څهٔ رقیبه تور دې په اوبه یُو[2]

راشه مرور چې مې شک له خاطر وځي
وايو به رښتیا چې دا په څهٔ سره خفه یُو

[1] [illegible]
[2] [illegible]



څکه مې ژن په سوزېدو تېر کړو
چې مې ږدون په مسېدو تېر کړو

زما خو ستا منزل مقصد دے اشنا
زړه مې له تېرلو مرحلو تېر کړو

دلسوزی مه ګڼه تپوس همدمه
ژړګی مې عمر په لمبو تېر کړو

زما دا تېر ژوندون زما خو نه وو
ټول مې د ستا په تلو راتلو تېر کړو

یار بیا د چا له تورو زلفو نه ګرځم
یو ځلې مرګ راباندې دو تېر کړو

لکه د شمعې بېګا ستا په طمع
ټول انتظار مې په سوځکو تېر کړو

زه چې سپرلي ته ورځم نه یمه
ما د دیدن په رنګینو تېر کړو

ژوندون د عشق لمبې ژورې غځه دی
سر مې له واړو ګړنګو تېر کړو

اشنا د ستا د بنګلی مخ په خاطر
ما خپل خاطر په سرو لمبو تېر کړو



ښه شوله وېره چې انکار دې وکړو
زما د واړه عمر کار دې وکړو

خلق چې ښه ولې ګوری ورته
تا چې مخ پټ کړلو ګذار دې وکړو

د زړه زخمونه مې بیا هله شماره
کړه د دې خپلې خندا شمار دې وکړو

زه لا خفه نه وم چې داغ مې په زړه
ته لا خفه یې چې دیدار دې وکړو

خاطره زه له تا نه چا وېرې یم
وار به دې راشی کله لږ وار دې وکړو



خبر نهٔ وم دې ثواب او دې عذاب ته
خو تصوير وم ستا په وروځو کښې محراب ته

ما وې تل به خوشحالي وي ستا په عشق کښې
اوس مې نهٔ پرېږدي غمونه اشنا خراب ته

ستا د سرو شونډو ارمان خو هله راشي
کله کله چې نظر وکړم ګلاب ته

يو ذره يې لرې نهٔ کړلو د مخ نه
فکر يو ړم د اشنا د مخ نقاب ته

تور ياد ونه مې په ياد کښې رانه هېر شول
يو دوه نهٔ راځي چې کښېنمه حساب ته

وايې زړهٔ به زما هم داسې تنګ تور وي
چې خاطر وکړم نظر سرې کباب ته



زهٔ يمه حېران د دنيا سترګو ته
ګوره کتے نهٔ شي د چا سترګو ته
ستا د ښکلو سترګو بلا واخلمه
مخ دې کړمه سترګو بلا سترګو ته
راشه اهو چشمه ليونے شومه
سترګې مې صحرا دي د ستا سترګو ته
ستا چې خندنو سترګو ته ګورمه
رامې شي لهٔ واره ژړا سترګو ته
راځي دې پهٔ خپله اشنا کړې دي
څله مې نهٔ وېل کړې اشنا سترګو ته
ستا خندا برېښنا وه د فلک غورندې
بيا را نغله هغه رڼا سترګو ته
تا جوړ ارادې د راتلو کړې دي
ښکاري مې رنګينه فضا سترګو ته

نن خو مې خاطره ستا خاطر وکړو
بيا به نهٔ راکوې سبا سترګو ته

تهٔ چې رقیب ته اشارې کړې دا د مل نښه ده
تهٔ چې دا غلې غلې ګورې دا د غل نښه ده

کله یقین کړمه په دا چې مرور يې له ما
ما ته معلومه ستا په سترګو کښې د چل نښه ده

تهٔ چې تپوس رانه مُدام کوې چې څهٔ لټوې؟
زهٔ چې دا لاس په سینه ږدم دا يې اول نښه ده

خاطره تا چې بېګا خوب کښې د هجران لیدلے
یقین مې دا دے آخری ستا د اجل نښه ده



خوابهٔ تراخه شو د خوږو هسې نامه پاتې ده
د بدو شپې دی او د ښو هسې نامه پاتې ده

تهٔ رانه هېر يې خدایه هر څهٔ په دولت کومه
د دعاګانو د ښېرو هسې نامه پاتې ده

په سترګو ژاړو او په زړو کښې سره خاندو اشنا
مهٔ کړه ګیلې د ژړېدو هسې نامه پاتې ده

په دېره مینه کښې چې زهٔ او تهٔ پرې نهٔ پوهېدو
د صفو ورځو او د شپو هسې نامه پاتې ده

چې په پلو کښې به يې په زړونو باندې اور لګوهٔ
د ستا د صفو اننګو هسې نامه پاتې ده

صبا به وائي چې د خداې په خاطر راشه لږه
په ما خاطر کښې د ژوندو هسې نامه پاتې ده



بېګا ستا په انتظار ې هسې ستړې تېره شپه کړه
خندل راپورې ستورو چې سپوږمۍ راته ګيله کړه[1]

ورته سر په زنګانه وم د وصال تږې ته غلې
ما به کله بنه کړه چې بېلتون راته قصه کړه

شو په منډه نظر ستړې چې هر ستورې به ځلبه کړه
چې د ستا په لور به تللو هغه ستورې به مزه کړه

ورسره به يې زړه وچوی که شپه وچوی د خاطر نه
په ټپل ټپل قدم شي خو وعده يې ستا پوره کړه



[1] صحيح مصرع داسې په کار ده : خندېدل راپورې ستورو چې سپوږمۍ راته ګيله کړه





لرې د نقاب لرې کېږدل زده کړه
زما په لورې سم کتل زده کړه

په جار خندا به رقيبان پوهه شي
پټ په لېمو کښې مسېدل زده کړه

اے زړه چې سم دا وارې ونه چوې
لکه تنها که ترکېدل زده کړه

ته ما خاطر ته نصيحت مه کوه
ناصحه مانه پوهېدل زده کړه



○

ما په شوګیر تا په خوبو تېره کړه
شپه مې سپوږمۍ ته په ګیلو تېره کړه

بېګا رانغلې شمع دې وه اشنا
ما ټوله شپه په دربدو تېره کړه

مینه د ستا زما نوې زړهٔ سوزوي
هسې لمبه دې په اېرو تېره کړه

دا ما خاطر ستا له خاطره اشنا
د هجر شپه مې په سلګو تېره کړه

○



○

رقیبه په خېر راغلې د اشنا خبرې کړه
پرېږده نورې نوې بس هم دا خبرې کړه

څو به پټې سترګې زهٔ د اوښکو کړم
ګلفامه راشه راشه دغه بیا خبرې کړه
نورې دا غمژنې د جفا خبرې پرېږده
کله کله یادې د وفا خبرې کړه
سود مې کله کېږي د ساقي په پیمانو
د ټولې میخانې او د مینا خبرې کړه
نم مې شو د سترګو سپین داوښکو په سیلابکې
بس زه شه راته وایه د خندا خبرې کړه
په خود نهٔ یم تپوس راځنې مهٔ کوه دهر
اشنا ما لېونی ته د صحرا خبرې کړه

خاطره چې ونهٔ کړې د بل چا د غم سودا
د یار د تورو زلفو د سودا خبرې کړه

○



یا د شرابو نه نشې وباسه
یا خو تریخې زمانۀ ځلې وباسه

یا مې د زړۀ رازونه مۀ لټوه
یا دې صحرا ته قافلې وباسه

څۀ لټوه تنګه دنیا که شوه دربه
زړې د ژوند لاهو ځې شپې وباسه

د آشنا یاده نور مې مۀ تنګوه
له دې سراې نه قافلې وباسه

اور د خاطر د زړۀ په خونه شو بل
سترګې د سترګو نه یې مرې وباسه







د سحر باده دا ارمان یوسه
یوسه په لوری د جانان یوسه

راشه ارمانه دا آرمان دې لرم
کۀ څې خو ما سره د ځان یوسه

چې دې د حُسن چمن تږے نۀ شی
راشه دا اوښکو مې باران یوسه

تۀ چې مستې شوې زما زړۀ ته ښکلیه
دا د غمونو ډک جهان یوسه

خوبه زر راشه دا آشنا سره
دومره خو راشه دا چشمان یوسه

لږ د خاطر کړه شمع روڼه خاطر
بهار دې راوله خزان یوسه



نکه ګلي له مسېدو ډکه شه
بانړه دانیغ کړه له اغزو ډکه شه

چې ستا خوږو زلفو ته نیغه نه شوه
زما ښتګل له زولنو ډکه شه

که یې هر څو درسره فندیولې
خو زما مینې له پیښتو ډکه شه

چې یې ژوندون له رنګینونه ډک شي
بیا په غصه کښې له نښو ډکه شه

بس پښېماني له زړه نه وباسه نن
وېرېږه مه له اشارو ډکه شه

چې تا یې هم ګرېوان ته خیرې وړي
هم ستا کوڅه یې له تېرتو ډکه شه

ښه دي زړه تش کړه چې بیا بیا نه وائي
فضا زما له اسوېلو ډکه شه

بدخواه چې لاس په سینه کېږدي درته
دخېبر څانګې له اغزو ډکه شه

خاطره یار دې په خېبر کښې اوسي
تېوله دره له سپېلنو ډکه شه

ستا له سپینه مخه زار زما زړګے شه
هم دا ستا نه سپېلنے او هم لوګے شه

ستا په ژبه باندې هره ژبه خوږند کا
اے اشنا یا اېرېدے یا پېښورے شه

زه او ته د چا ژړا او خندا څه کړو
زما اوښکې دې باران ته پسرلے شه

اوس د ګل غنچې ته لرې شه رقیبه
یا څخپله باندې ګل شه یا اغزے شه

زه خاطر دې نور خاطر کولے نشم
اے رقیبه که پوهېږې نو سړے شه

○

د هجران په شپه ډیوه په لاس کښې راغله
خدای خبر چې چرته تله په لاس کښې راغله

رقیبان خو دې اوس ټول راله راتېر شي
چې یار راغے نو وسله په لاس کښې راغله

چې مې صبر اُمید دواړه پسې خوړ کړل
چې لۀ ځانه خبرېده په لاس کښې راغله

چې د سترګو د سرو شونډو او د زلفو
تصور یې یو ځېره په لاس کښې راغله

چې په تلو کښې شوه مسکې نو بیا به راشي
اے خاطره بس راځه په لاس کښې راغله

○

○

ترخو ته مې نږۀ کېږې کله کله
په خوږو سپړے مې کېږې کله کله

د دردمندو نظر هغو له په کار دے
چې دلاسه دې ښۀ کېږې کله کله

چې اشنا دچا نه ورک شي موندے نشي
پسې ځان هسې ورکېږې کله کله

ښکاري یار مرور نۀ دے اے خاطره
په لېمو کښې چې اوسېږې کله کله

○

ستا د ښکلي مخ شمع چې مړه شوله
جوړه په محفل کښې توره شپه شوله

راشه لږه واوره د اُلفت قصه
بس دے نوره زړه کښې مې نړه شوله

ډېرې وعدې ښې وې لږې لنډې
اوس دې هر یو کال راته وعده شوله

تا چې د خاطر خاطر ونۀ کړلو
ښه شوه ډېره ښه شوه اشنا ښه شوله



بیا به سره ګورو اوس ځوانی ده درومه درومه
څوک کړی دومره غم خو دیوانی ده درومه درومه

اوس تۀ ایله راغلې چې بس وخت د څنکدن شو
بیا راته ګرانیږی اسانی ده درومه درومه

وې یې چې بازار مې د ښایست دے ګرم شوے
هر شے پۀ کښې ختلے دے ګرانی ده درومه درومه

نۀ او تۀ خاطره نور پۀ څۀ سره خوابۀ یُو
مینه خو هم دا پښیمانی ده درومه درومه



شکر چې نهٔ هم ستا د ښېرې شرمه
اوس دې چې نهٔ ښکلېده کوڅې شرمه

نهٔ به په ځان څهٔ وکړم چې راشې تهٔ
واړه دې پهٔ طمعه کښې ذرې شرمه

دومره درنګ دې یم که څو لرې یم
لرې به شم نور که درنګ دې شرمه

نن خو دې خاطره چې سبا ته وے
پوه دې نهٔ د مکر پهٔ وعدې شرمه







کله چې پهٔ فکر کښې د ستا شمه
لاړ شمه لهٔ ځانه خو بیا راشمه

ته که لرې ضد نهٔ خو پښتو لرم
اوس در سره څرنګه پُخلا شمه
خیال او تصور ته به سلام وکړم
نهٔ که د خپل زړهٔ پهٔ تماشا شمه
تا وې شې د زړهٔ نه ستا د مخ لمبې
کم چې بستا د زلفو پهٔ سودا شمه
نورې دې د مینې لارې سمې کړه
خدایږ خبر چې کوم پلو خطا شمه
عشقه راسې ځای لره دې راوستم
اوس به نهٔ د ستا نهٔ د دُنیا شمه
نن دې د پرون وه د راتلو وعده
نن څنګه پهٔ طمع د سبا شمه

وږې غریب نیولې راکتلی دی
لږه بهٔ خاطر ته پهٔ خندا شمه





دلارې خاوند شرم د بېنو ځني وتلے يمه
اشنا په تاپسې له تلو ځني وتلے يمه

د آشنا مخه نور مې سرے ټيټ وے نه شي
نه خو د اور او د اوبو ځني وتلے يمه

په بنه بنېره به دې نه لس ورځ نازېدمه اشنا
نن مې اوس پوه دے د بنېرو ځني وتلے يمه

تا خو به نور راته خندلي وي چي داخله وشي
که په ټپ دې د کوڅو ځني وتلے يمه

دغه داغونه مې دي بس دوه من خاطر مې وشي
نور د کړلو د ګلو ځني وتلے يمه







تو به خنګه تېرېږي په هوښيار باندې وختونه
نا پوه هسې تېرکړل په قرار باندې وختونه

هېڅوک هم سخيان خو د سبا غمونه نه کا
له شومانو نه تېرېږي په خروار باندې وختونه
دا تېر وختونه پرېږده له انکار سره چي تېر شو
ته راشه نور دې سم کړه په اقرار باندې وختونه
نه دے هسې کرم چي څوک په غم کښې د روند بنکارېږي
په هر چا باندې تېر شي په خپل وار باندې وختونه
ګوره د هغو په نېه وکښې نوره سودا نه وکړ
تېر چي شي د بنکليو په بازار باندې وختونه
لګه باد هسې تېرېږي وخت په روغ او په بيمار
ودرېږي نه ودرېږي په بيمار باندې وختونه
دمغ دې تصور کړم خکله مغ مې داسې تور دے
خبر نه يې کړل تېر مې په انکار باندې وختونه

ما خنګه به لټون کړے د دنيا له غم نه خلاص يم
خاطر ما بنکلي تېر کړل په خپل يار باندې وختونه





ما پهٔ مثال لکه پتنګ وکړنه
تهٔ دې د شمعې غوندې رنګ وکړنه

کهٔ مې کوثر شول نصیب د دیدن
بیا مې شهید د عشق پهٔ ننګ وکړنه

زمکه بستر وی لېمنو ته مُدام
نږکیه تهٔ یې هم پالنګ وکړنه

لکه چې خومره ستا غمونه دي وېر
پراته مې ټول په زړګی زنګ وکړنه

خاطر کچکول د ګدا واخستلو
اشنا دیدن په ځان قلنګ وکړنه







د ستا د خولې چې فیصله ماته شوه
نوره د زړهٔ مې حوصله ماته شوه

شونډې دې مې رپېدلې نهٔ وې
په زړهٔ دې بله څهٔ راتله ماته شوه
نور مې ساقي څهٔ جُرم نهٔ دے کړے
تشه لهٔ لاسه مې پیاله ماته شوه
کهٔ په عوض کښې یې هر څهٔ غواړې تهٔ
دا مې په برخه د سپېده ماته شوه
لاس مې یې واکه چې جامونو ته ځي
ما بنام څونهٔ دے چې روژه ماته شوه

خاطره پرېږده د دروغو تروې
نوره زما او ستا ناغه ماته شوه



نور زهر په خوږو کښې د افسون مه راکوه
دا بس دے اشنا نور دا نېښ چاقوون مه راکوه

ته تل کړه ستمونه خو په خپله اے اشنا
سزا د رقيبانو په لمسون مه راکوه

چې خو وکړې وعدې نو هومره لاشې يې وعدې
دا دې وی در پاتې خو زبون مه راکوه

که زه چرې په خود وے نو په تاشېدا کېدم
په سترګو ماله دار بيا د جنون مه راکوه

هر څو که زه خاطر د اشنا اجل ته مخ شوم[1]
دګوډ مبارکی خو په ژوندون مه راکوه

---

[1] د ديوان او منزل نه کښې مصرع داسې ده «هر څو که زه خاطر د اشنا اجل ته شوم»

ته خو وايه زه به څه کړم    نړکيه لېونيه
څه به کړم او څه به نه کړم    نړکيه لېونيه

تا خو وې آبادی پر ېږده، ما خو پرېښوه دلته څه دی
په صحرا چې ګرځېده کړم    نړکيه لېونيه

چې اشنا کړې سترګې پورته بانه ستا په لور دروکې
زه بې کوم طرف کاته کړم    نړکيه لېونيه

زه خاطر درته حيران يم چې په څه باندې راوين شوې
چې په څه دې اوس وده کړم[1]    نړکيه لېونيه

---

[1] د منزل نه او ديوان کښې (وده که) دے

ځيګر يې شو کباب په لمبو اور ولګېده
په ما دے يک تنها کله په هر لوري ولګېده

چې لرې در ته دي شوم د وصال په تمنّا
د ستا د ګنګروکانو په ما شور ولګېده
ځيګر يې تش ګوګل دے راشه وګوره تماشه
د سوو فريادونو ټينګ ټکور ولګېده
زړګيه اُميد لنډ کړه پس له دې نو د لاله وصاله
بېلتون دې ځواني مرګ شي اوس يې زور ولګېده
سپين مخ دې رابنکاره کړه د نقابه لکه نمر
ور بل دې پرې د ورېځو غونډې خور ولګېده

خاطره خدای خبر کله بيا ديدن وکړې ديار
چې بيا د غمازانو داسې زور ولګېده

اشنا وې دا لوګی دی د خاطر داسې پلو
رقيب وې ما زيګر شه په تن اور ولګېده

١ منزل نهار ديوان خاطر کښې داسې دے: ځه خاطره خدای ګوره ديدن وکړې ديار
٢ منزل نهار ديوان خاطر کښې [illegible] شريه دے [illegible] معنی بدلې او قافيه غلطې



لرے درياب د مينې نه شي په واړه زړه
شومه ياره بيا د ستا غونډې په نه زړه

چې په خله کوری يو او په زړه بله
د هغه سره به مينه کړې په څه زړه

سوی د ننګ ته چې لې وکوره دلبره
ما نيولے ستا د حسن په لمبه زړه

بېګا ستا په انتظار کښې شمع رويه
د هر ستوري سره پورته چې خاته زړه

بيا يې خوب واړه تيرېدونه او هيبت شي
د هجران چغې چې وشي په وده زړه

پرغم نه دے چې يې وکړې اے خاطره
د پرغمونه دی کوه يې په ساړه زړه

○

داسې بله شپه به په نصیب سره راځي
په عمر کښې راځي خو د رقیب سره راځي

خوشحاله وی په غم کښې هم[1] ابېداره شامطام
را دروی خوشحالي دې د حبیب سره راځي

څوچې په تندی یې د ازل لیکلی نه وی
دومره زحمتونه د غریب سره راځي

خندېږی او ګډېږی سره ګلونه د صبا
نغمې چې د بهار د عندلیب سره راځي

نور خلق که رغېږی په دارو د طبیبانو
خاطر ته مرضونه د طبیب سره راځي

○

ل [illegible] دیوان خاطر کښې [illegible] نسخه کښې مصرعه [illegible] کړی
لله [illegible] ترکیب مصرع ئې معنی کوي



○

عکس د ستا زما د ستر ګو له زنبار نه وځي
د زړه له کوره مې بېلتون په یو ګذار نه وځي

داستا کوڅې له زه د دروغ ځان په خیال نه د ځمه
چې تاو را تاو نشی د ستنې سوم نه تار نه وځي

اے شمع رڼه یه راشه نور د غه ضد و نه پرېږده
چې په مئین دې هره شپه د انتظار نه وځي

د ستا د عشق په سمندر کښې مې ژوند تېرېږي
چې په ربښتیا خو سمندر وی د انکار نه وځي

شپې د اوښکو د خاطر پسې ایله زیاتې شوې
ښکاری د ستا د ځوانۍ اوبه د شو بهار نه وځي

○

چې کتے در ته لۀ ډېره هجره نۀ شم
د ستا سترګې ې کوځې د زړۀ نه وځی
خداې دې هغه وخت را نۀ ولی صنمه
چې ې ستا د دیدن شېبې د زړۀ نه وځی
کۀ د سترګو نه ې وځی د ستا سترګې
دې و پل کۀ ې جرګې د زړۀ نه وځی
موده پس سره یو ځاې شو پۀ محفل کښې
ستا بانه ې ش نېزې د زړۀ نه وځی
جمع زړۀ لره اشنا چې زۀ د ستا یم
چرته زلفې ې خورې د زړۀ نه وځی
د مخ لرې کړه پلو زۀ دې لوګے یم
چې ې ستا د مخ لمبې د زړۀ نه وځی
تر هغې به دې رقیبه زړګے وچوی
چې خاطر د معشوقې د زړۀ نه وځی



زړګیه تا وې چې دردونه څۀ دی
دا پۀ ګوګل کښې دې ترګونه څۀ دی
زړۀ پۀ ښو ې وله خوګ یې وینی
وهه وهه دا سترګکونه څۀ دی
بس خو کۀ مخ دے نو ګلنامه دے ستا
دا د خورشېد قمر مخونه څۀ دی
نۀ ده اسانه اشیانه ې د زړۀ
لا د ستم دې تندرونه څۀ دی
د ستا منزل دې دومره نور لرې شی
ګوډو روندو ته تیندګونه څۀ دی
کۀ چې ذرې کا نور نو لا به ښۀ شی
ستا پۀ فضا لا وسعتونه څۀ دی
چې مرور وی یو ساعت یې ګوره
چې وی پښخلا نو بیا ګلونه څۀ دی
چې مرور یې پېژندے څو نۀ شې
ما ته پۀ غلا غلا دیدنونه څۀ دی
دا پۀ خاطر ګلنامه ستا د شونډو
وی پۀ خاطر دې پرهرونه څۀ دی

○

چې پښېمان نهٔ شې پهٔ بیا کښې څهٔ دی
پرېږده راوګوره پهٔ دا کښې څهٔ دی

زما پهٔ اوښکو کښې خندا ده د ستا
یاره د ستا پهٔ دې خندا کښې څهٔ دی

شمعې د نن شپې نه سبا جوړه ده
سبا به مړه وي پهٔ سبا کښې څهٔ دی

زړهٔ مې يې ستړے پهٔ تورو ټوکړلو
ګله دا ستا پهٔ دې ګړوا کښې څهٔ دی

خاطره تهٔ چې ماته نهٔ شې کتے
لږه مې پوه کړه چې پهٔ ما کښې څهٔ دی

○

○

ګله د ستا د خندېدو شپې دی
زما د اوښکو د شېبو شپې دی

پهٔ دا لنډ تنګ وخت کښې مې حال وپوښته
دا مې د ژوند د تېرېدو شپې دی

پهٔ تا اختر اوس د ځوانۍ راغلے
دا تورې شپې د پسرلو شپې دی

د بخت سپوږمۍ تهٔ به راځې کله
اوس مې د ژوند د محفلو شپې دی

دا زهٔ خاطر درنه تېر شم کومه
د بېلتانهٔ دې تورې څو شپې دی

خاطر د وینو غړغړې وکړلې
دا يې د ژوند د ختمېدو شپې دی

○



د ستا پۀ غم کښې خوشحالي پټې دي
پۀ دې زندان کښې ازادي پټې دي

زړۀ کۀ تۀ غږې نۀ لېونے خونۀ يم
د مخ سره زلفې رسۍ پټې دي

پۀ خوږو زلفو کښې راګورې پۀ چل
پۀ دې ځنګل کښې دې هوسۍ پټې دي

پۀ کومو سترګو بۀ بيا بيا درځمه
پۀ اشارو کښې دې تنګۍ پټې دي

خاندې چې جوړې شول د زړۀ زخمونه
ايله پۀ وينو کې خوږۍ پټې دي

ځۀ شو پۀ خُلۀ چې دې رخصت راکړو
ستا پۀ نظر کښې تسلي پټې دي

پۀ سرو سرو ګورم تورو سترګو تۀ دې
چې پۀ کښې څۀ بلا مستۍ پټې دي

ستا لۀ سينګاره مې ځواني شه لوګے
دهرې پۀ خاورو کښې ځواني پټې دي

د ستا پۀ خيال زما خاطر شو اېرې
خو د اُميد پۀ کښې سپرغۍ پټې دي







زما چې دا مدام دغه دلبر تۀ سترګې دي
نور يې نۀ وينمه سترګې کۀ هر چرته سترګې دي

لۀ هره دره ورو تلې سترګې مې آشنا
کۀ وړې دي کۀ تېرې خو دې در تۀ سترګې دي
نۀ تل را تۀ مرسته پۀ دې عمر مۀ شه جوړه
زما خو هم ګلفامه دې پرهر تۀ سترګې دي
د مينې سمندر تۀ سترګې غرقې مې کړې تا
وتلې مې لۀ تا کله بهر تۀ سترګې دي
پۀ اوښکو مې کړه ستړه وړه ونه مې د عشق
کۀ ګل يې د مخ رژي خو ثمر تۀ سترګې دي
را وۀ چې خبرې ښه وه پۀ وخت سترګه د سبا
زما خو هم ختلې دې سحر تۀ سترګې دي

خاطره کۀ خو غواړې نړۀ لۀ تا د يار ديدن
نۀ نۀ شم ورکتلے زما نمر تۀ سترګې دي





نن خو ما ته هسې بله دنیا ښکاري
تا چې نهٔ وینم نو خله دنیا ښکاري

تنګ کوګل یې د دنیا شي چې ته یاد شې
بې تا تنګه لا کوګله دنیا ښکاري

بې له مانه هسې کله صحرا ښکاري
بې له تا نه هسې کله دنیا ښکاري

چې پهٔ هجر و وصال نه پهٔ کېږي پوهېږم
دا وستا ده کهٔ مې خپله دنیا ښکاري

هیڅ خاطر دې خزان و نهٔ کړو خاطره
شګه خپره او بې ګُله دنیا ښکاري







زړهٔ مې کهٔ هر څو رانه هر څهٔ غواړي
هیڅ نهٔ دے غیر چې هر څهٔ زړهٔ غواړي

اے ماشومه زړهٔ ته رانه ښهٔ وائي
هغه رانه غواړي چې ما نهٔ غواړي
تل به بې پروا وي ګړنګونو نه
څوک چې خپل منزل ته رسېدهٔ غواړي
زړهٔ او د نظر ځني دې خلاص کړمه
نور دې لا ښایست راځني څهٔ غواړي
هر سپهے دستا د دیدن وي نهٔ دے
راخو هم زړهٔ غواړي هم لېمهٔ غواړي
خپر نے کهٔ ذهیر شم ځان ته ګران شومه
بد هم پهٔ کېږي وی چې څوک یې ښهٔ غواړي

خلق پرې تېر شوي له سرونو نه
ځُلهٔ ورنه خاطر پهٔ تشه ځُلهٔ غواړي



زما زړهٔ او د ستا سترګې سره پېښې ۱
نور به بد کا چې پهٔ دې منځ کښې څاښېږی

کهٔ خبر نهٔ راکوې خبر دے ښه پوهٔ کړه
سپین زړهٔ چې ستا لهٔ مینې نهٔ صبرېږی

کهٔ دې غم په ما انبار وی پروا نشته
د کلونو لاندې څانګه نهٔ ماتېږی

چې مې ورتې اشنا وائی "خفه شوې؟"
زړهٔ مې بنهٔ شی په ګوګل کښې نهٔ ځاېږی

زهٔ خاطر داسې هیبت ستا د راتلو کړم
لکه پانه چې پهٔ ونه کښې رپېږی

۱ پوهېږی



ما وې نن به چې زړهٔ وچوی خو دردونه دی تېرېږی
پرېږده څهٔ کړې تپوسونه خو وختونه دی تېرېږی

جوړې تا اراده کړې د راتلو زما پهٔ لوری
نن چې سترګو ته د وړاندې مثالونه دی تېرېږی

جانانه زهٔ چې زغملے شم کهٔ وی د ستا د لاسه
هر څو کهٔ ستمونه طوفانونه دی تېرېږی

ستا د حسن پهٔ بهار کښې یاره نور چې رنګینې نشته
د دهر پهٔ خاطر باندې غمونه دی تېرېږی

۱ متن لیکنه د دیوان کښې دا لفظ نشته چې مصرع چې پوره معنیٰ کړې ده



څهٔ چي پرې په ما زما د یار سره جوړېږي
خپ دے زما زړهٔ د انتظار سره جوړېږي

کله په یو رنګ شي بیا سل ځل په بل انداز
سل ځلې دیدن د خپل خپل وار سره جوړېږي

وګوره وا ړهٔ شنګه په سترګو کښې اقرار کا
بس خو د یار شونډې د انکار سره جوړېږي

څهٔ په خاطر کېږي نن د ښکلیو په صفت
هغه وخت راغلے دے چي دار سره جوړېږي







د وخت د ګذارولو مې داغونه نهٔ جوړېږي
زما سره سپرلیه ستا ګلونه نهٔ جوړېږي

یو ځلې یې وران کړے ستا تصویر را له اشنا
غم مخښې زما مخه فکرونه نهٔ جوړېږي
راضي شه د یار غمه د دُنیا د غم سره
یو کور چې دې ګړ زړهٔ په کښې برجونه نهٔ جوړېږي
اے زړهٔ ته راته وائي چي یار راشي څهٔ به کړو
لاخو به ځني وړاندې تعبیرونه نهٔ جوړېږي
زهٔ خو یې اشنا لا د پښو لانه لمبے وم
د عمر لېونو ته زنځیرونه نهٔ جوړېږي
زهٔ تا ته په قدم کښې او تهٔ ما ته وې ولاړه
زما او ستا په منځ کښې پېغورونه نهٔ جوړېږي

خاطره یو ورځ نهٔ ده نن زړهٔ جوړ او سبا وران
چي ورپسې کوي غمونه هغه زړونه نهٔ جوړېږي

نور به ایله څه د لبونو نه پاتې کیږی
ګوره چې یو کړ د چې یې د پښو نه پاتې کیږی

زړه مې چې اشنا د ستا د تلو نه پاتې کیږی
خود به راته غم د خوشحالو نه پاتې کیږی

پیغې مې د زړه د لمن ورڅ پېدې لاړې
غم دې په کښې ډېر شو د نیوونه پاتې کیږی

نه بلېږه صې اور دمغ دې. دا مې زړه وه
ګوره چې به سکور د سرو لمبونه پاتې کیږی

تا چې په کړو وړو دعشق بوتلم نړکیه
څنګه سې لارې د ړندو نه پاتې کیږی



وی به مې ګواه سبا دا سپین سپین دیوالونه
دغه تور لوګی چې د ډیوو نه پاتې کیږی

یاد مې د دنیا له یاده مخکښې مخکښې ســـدی
څنګه به د ستا د یادېدو نه پاتې کیږی

باده د بېلتون چې مې په ډلې بیا را نه شي
سترګې مې د یار د تماشو نه پاتې کیږی

زړه له مې دارو دی او کجل مې د بصر دی
خاورې یې خاطره چې د پښو نه پاتې کیږی[ه]

بیا راغلله شپه او ځلند سترګې یار رانغې
بیا به مې خاطر ش دخوبو نه پاتې کیږی

---

ه دیوان کښې مصرع داسې ده: خاورې دې چاڅانه چې د پښو نه پاتې کیږی

[illegible]

سترګې دې کړه برنډې چې وختونه وارخطا شي
زلفې کړه پرېشانه چې کړدونه وارخطا شي
څو به کړې وعدې راته د شفې او د سبا
وېرې شپې وعدې کړه چې څوبونه وارخطا شي
زۀ درته له داره په محفل کښې کښېنم نۀ شم
سترګې چې راواړوې نو زړونه وارخطا شي
عقله چې يې وينمه زلفې تار په تار
بس څو يو کړېوان ته مې لاسونه وارخطا شي
دومره اے زړګيه ! څان ته مه بنکلوه بنکلے
وبه چوې له واره کۀ دردونه وارخطا شي
غلۀ سره د مينې په محفل کښې چې يو ځاې شي
زړونه وارخطا شي، چې رنګونه وارخطا شي
مل ئې کړه د زړۀ مې کۀ په خُلۀ نۀ بيانېږي
داسې ادا وکړه چې دا دونه وارخطا شي
څکه زۀ خاطر دې دومره وصف کړم اشنا
پرېږده چې د خلقو درته زړونه وارخطا شي

○

میاشتنۍ ژوندۍ پښتون اکتوبر ۱۹۵۹ع

○

په اَرمان د نادانۀ شي چې هوښيار شي
خوشحالي او خوبې يې ورک شي غم يې کار شي

تخت و تاج او بادشاهي يې په کار نۀ وي
په اَرمان د روغ صورت شي چې بيمار شي

په توبه باندې وېر بد ښکاري چې زړه شي
ښکاري ښۀ چې په ځوانۀ کښې توبه کار شي

لېونۍ په کاڼو لګي ورته خاندي
د هوښيار د څنکدن په يو ګذار شي

خپله غمه د يار غم يې لرې مېلمه دے
تا به وکړمه وار وکړه کۀ دې وار شي

تۀ دې خپلې سترګې وګوره چې څۀ کا
د خاطر زړګے به څرنګه قرار شي

○



د دې دنيا نه چې ګلان ورک شي
غږ د بلبل به په بوستان ورک شي

دا ته چې ژاړې ستا ژړا هيڅ نه ده
لکه درياب کښې چې باران ورک شي

هر سړه ې سود په لېونتوب نه کېږي
چې په منګل کښې ې ګريوان ورک شي

څوک به لټوي مه ستا ورک شوي پلونه
چې د خاطر په کښې چشمان ورک شي







چې يې روڼ دے د ليمو په پېمانو شي
سو دې کله بيا د لب په بهانو شي

څوک چې خداې را کړے نه وي نو به ژاړم
د خېبر فصلونه تل په بارانو شي
که د ستا په نوم بدنام يم پروا نشته
لېونۍ غږونه تل په لېونو شي
نه د ستا لېونو سترګو نه ډار نه کړم
که خويونه دې د سترګو لېونو شي[۱]
هغه شپه چې مې د ستا زلفې په لاس ورې
د غه شپه د سپيلنې د وړاند بسو شي[۱]

چې د نړه کوب ته دې د اشي پروا مه کړه[۲]
لے خاطره خاطر تل د مېلمنو شي



---

۱ - که د ا دواړه شعرونه متن لر نه کښې نشته

۲ - ديوان خاطر کښې دا مصرعه داسې ده: چې د نړه کوب ته را غله ودې سېوزي

ستا چې خورې زلفې کوڅې را تاو شي
زما د زړه ځنې بسې را تاو شي

په څېره پړه لوپټه کښې تا وشي
لکه وړانه بېړ بوکه را تا وشي

نهٔ به مې بیا کړې لېمې د غرونو
نهٔ به دا ستا سترګې هوسې را تاو شي

پهٔ زړ بېړې خوبه وا نهٔ ویم لهٔ تا
نهٔ به خاطر ستا لهٔ ځوانه را تاو شي



وړاندې به مې دا ونې چې کاتهٔ به شي
اوس چې پهٔ ژوند پړه شوم وایم څهٔ به شي

وایم ستا بڼو ته د زخمي زړهٔ نه
بس دے کهٔ وی داسې نو ساړهٔ به شي

نهٔ ومه لهٔ داسې جدائۍ خبر
ما وې پهٔ ساعت کښې تلهٔ راتلهٔ به شي

وړې کړې تېرې چې راشه خلهٔ غوړاوې
ما وې چې کهٔ راشې نو خرابهٔ به شي

ستا د حسن شمع او دا شوق زما
نهٔ یې پرېږدی دواړه سره مړهٔ به شي

هر وخت چې ژړا کړې خندا نشته دے
زړهٔ خو د خاطر اوبهٔ اوبهٔ به شي

خزان لاړ شی بهار راشی ګلان خوشحاله شی
بلبل یې د چمن وی بورا ګان خوشحاله شی

نن خو مهٔ راکوه مخ دې بل خوا واړوه
پرېږده چې نا پوهه رقیبان خوشحاله شی

شمع چې بلیږی د محفل د پاره خاندی
زړهٔ کښې داسې وایي چې عاشقان خوشحاله شی

راکړه جفاګانې، ستمونه کړهٔ غمونه وک
زړهٔ کے د خاطر وچوه خو چې خان خوشحاله شی







راشه پهٔ کوڅو کښې د جرګو خبرې نهٔ شی
څېرته چې پهٔ مونږ کښې د پردو خبرې نهٔ شی

ډېره شپه وله راشه چې لهٔ یو بل نه خبر شو
یاره پهٔ یو شپه د ټولو شپو خبرې نهٔ شی

وایمه لهٔ ځان سره چې دا به ورته وایمه
راچې شی آشنا پهٔ حوصلو خبرې نهٔ شی

زړهٔ او تهٔ چې وو یښو لهٔ ورایه سره پوهې شو
چا وې چې پهٔ سترګو کښې د زړهٔ خبرې نهٔ شی

یاره ستا د هجر اوږدو شپو شو ګیره کړے یم
ګوره چې مې اوس پهٔ اسویلو خبرې نهٔ شی

خدائې خبر خاطره زهٔ بیا چرته تهٔ بیا چرته
پرېږده اوس پهٔ تلو کښې د راتلو خبرې نهٔ شی





د ستا په سترګو کښې به څهٔ پاتې شی
رقیبه یار که ئې په ځلهٔ پاتې شی

ستړے مزدور سحر وختی پاڅیږی
په شوګیرو مئین ویدهٔ پاتې شی

یو ځل نیغ په دې لار تېر شه اَشنا
چې دې کاږهٔ وږهٔ کاتهٔ پاتې شی

افسوس چې ستا په خیال کښې څهٔ ښکاریه
دغه ارمان به ئې په زړهٔ پاتې شی

وستایه ډیر د یار تراخهٔ خاطره
چې په کتاب کښې دې خوږهٔ پاتې شی







زړهٔ په دې نهٔ دے چې ناوړے مخ دے
چې کوم ئې خوښ شی هغه ښکلے مخ دے

مخونه ډیر دی خو دا مخ ئې خوښ دے
والله یهٔ ټولو کښې وتلے مخ دے

پرېږده چې اوښکې ئې بهیږی په مخ
دا بې ګناه جانان رټلے مخ دے

څهٔ وشو تا که دیدن بند کړو په ما
خاطر په زړهٔ کښې ستا ساتلے مخ دے



 



○

څوک چې ستا د ګراني مينې طلبګار دے
هغه کله له غمونو نه وزګار دے

ستا سپنګار زما په سترګو کښې غمېږي
چې په کوم لورې ته ګورمه بهار دے
د منصور خو عيسې نوم دے په دنيا کښې
که يقين دې شي نو هر عاشق په دار دے
خندوې، تغيروې چې مې ستا مينه
بس هم دغه مې خزان او هم بهار دے
دا رقيب دې څه په مخکښې مخکښې کيږي
بس د ستا را باندې هر منت ګزار دے

که دې يار له سترګو وتو خاطره
خپل غزل مخې ته وېښه دا يار دے

―――――

مياشنۍ، غنچه، پېښور
―――――
اګست ۱۹۶۰ء



○

خوږ خوږ يو د مينې په ترخو کښې انتظار دے
ښکلي تماشه په تماشو کښې انتظار دے

ستا لندو وعدو چې په ما څومره اوږدې کړې وې
ښه دے چې د ژوند په ورځو شپو کښې انتظار دے
مه کړه ضبطه مه چې راله اوښکې وچې نه کړې
ورېږي دې د چا په دې شپو کښې انتظار دے
تا چې د وفا پلو په ما باندې وانه نيوه
ما ته څه د هجر په غمو کښې انتظار دے
لاړې د اُميد د زړګي شنې پاڼې مې وچې شوې
بيا درته سپرليه په راتلو کښې انتظار دے
ما وې چې که نن نه وې سباله به دې خوښه شي
ږړې مې درته کړے په اسرو کښې انتظار دے
کله به شي ستا د حُسن شمع راته بله
ګران راته د زلفو په تيارو کښې انتظار دے

ښه ده چې خاطر دې دومره مخ ته لا کتلي وو
ښکليه ستا ديدن په سرو لمبو کښې انتظار دے

○

○

خدایه خو سره چې وفا زما دلبر دے
چې لۀ غمه یې زۀ مرم پۀ دۀ اخته دے

د هجران د لاسه شپ و روز ژړېږم
ځکه داسې چې پۀ اوښکو ګرېوان تر دے

یا خو زۀ ورته نظر کولے نۀ شم
یا خو دے ډېر پۀ لېمو بنې زورور دے

اوس چې سود پۀ بل بشر د زړګی نۀ شي
چې لیدلے مې د یار ښکلے بشر دے

تور بانړۀ د یار د غشو پۀ مثال دی
چې ویشتلے یې زما د زړګی سر دے

دریغه زۀ خاطر خوږوه پۀ سپل قصور کې
چې پۀ څۀ باندې زما نه مرور دے

○



○

ما وې ځان را ته اشنا د ستا پۀ څېر دے
دې وې ورو دستو به تۀ پوه شې څۀ وایې خبر دے

دې وې زړۀ کۀ خېرې ستا زما پۀ زلفو
ما وې ستا هر یو کلپ ورته کاوشېر دے

دې وې زۀ یمه هر سحر پۀ مهر روڼه
ما وې زړۀ زما د لوړو غرونو شېر دے

دې وې بیا تۀ مخ ښکاره کړه کۀ پښتون یې
ما وې هر پښتون پخوا لۀ سر، تېر دے

ما وې زۀ خاطر دې هر وخت یم پۀ طمع
دې وې را شه دلته کېنه غم یې تېر دے

○

شاید چې حُسن د اشنا مې دلبس نه ډک دے
د زړهٔ جهان مې د لوګو د اسویلو نه ډک دے

خوښه مې ستا په بڼو غشو زده وېشتنه د زړهٔ
ګنې وطن خو مې ستا یاره د ازغو نه ډک دے

د ستا نصیب شه خوشحالي د بې غمۍ خوبونه
زما د خوار غریب نصیب د شوګیرو نه ډک دے

نمر مخې مخ ته مې لهٔ ورایه نا خبر کتلي
نن را ته ځکه دا جهان د پلوشو نه ډک دے

راشه ګلونه ګواهان دي په صحرا کښې زما
چې ټول چمن زما د اوښکو د شبنم نه ډک دے

دا حسرتونه داغونه تنګ ګوګل زړکیه
لهٔ دې خو ګور ښهٔ دے هر خو کهٔ د تیارو نه ډک دے

زړهٔ مې یوه د لیونتوب په کښې سودا کړله
بازار د حُسن خو لهٔ ډېرو تماشو نه ډک دے

همدمه مهٔ را یادوه دا تېرې هېرې قصې
زما زړګے خو مختښے لا د ګیلو نه ډک دے

زما خاطر بې لهٔ شکونو لهٔ فکرونو ډک کړه
د مغ کتاب دې داله راوړه د قیصو نه ډک دے



تنګ توب سوے د ستا سوے ورد بل دے
چې دې اور د بنګلي مخ ترې لاندې بل دے

چې څو څُم په مکتب لا مزل زیاتیږی
اشنا ستا د دې منزل څنګه مزل دے

نجې مې شک په ګومه لار دے سودائي شوم
نور دې هېڅ مو نه دے نهٔ دے خو ستا پل دے

چې اشنا دې په کښې اوسي اے خاطره
خبېر وګڼه حرم کهٔ څو شډل دے

غوره وړې پهٔ زړګی باندې چې غم دے
د آشنا سود به پرې نهٔ شی وائی کم دے

زهٔ چې مستې پرېشان او سرګردان یم
هر یو غم یې لکه زُلفې پیچ وخم دے
د هجران د لاسه شب و روز ژړېږم
راشه یو وارې پهٔ سترګو مې تور تم دے
هغه خاوره مې دارو ده کهٔ چا راوړه
پهٔ کوم ځاې باندې یې ایښے چې قدم دے
ټول عالم یې وړ صفت د سخاوت کا
ګیله څهٔ کړم چې دا خپل نصیب مې کم دے
زهٔ خوځکه مستې شرمه پهٔ خندل یې
خلقه ما او پهٔ جانان کښې کوم یو کرم دے
چې دلبرې پهٔ ژړا پورې نن خاندی
نن وېچ شوے مې د سترګو کله نم دے

حکیمانو له مهٔ درومه خاطره
د یار شونډې دې پرهر له مرهم دے

ستا پهٔ انتظار کښې ماته کال څهٔ دے
دومره لا مانده نهٔ یم ستا خیال څهٔ دے

سوزې هم هغه چې پرې بلېږی اور
خانده لے اشنا تا ته ذُغال څهٔ دے

تا کهٔ پهٔ شاله کښې پټه ولیدم
بیا به داسې وائې چې مشال څهٔ دے

زهٔ دې هر یو غم د زړګی داغ کړم
ماته لا د ستا پهٔ جبین خال څهٔ دے

ما خو درته وېل ووېره مې مهٔ کوه
وګوره خاطره اوس دې حال څهٔ دے

چې نړه ئې ستا په نور دے په بل نور ئې پېژنو نه د
نظر چې ستا په لور کړم په بل لور ئې پېژنو نهٔ دے

اے مجرو چې ئې ورانه نهٔ کړې دا د نړۍ خونه
ارمان په کښې د یار کړمه په کور ئې پېژنو نهٔ دے

دا نهٔ چې ځر بنا پست باندې شپه دا دے زما زړهٔ
د ستا په مخ دې سوزی څو په اور ئې پېژنو نهٔ دے

په غېر ستا د محفل څنې یې نهٔ شی ځهٔ گذران
در دروی به خاطر څو په پېغور ئې پېژنو نهٔ دے

چې لب نظر ئې د بصر پاتې دے
چوړې منزل ته ډېر سفر پاتې دے

شپه کهٔ اوږده د څوربو زلفو ده څوْ
ورار دې د سپین مخ د سحر پاتې دے
ناز دې د مینې د لمبو څنې زړهٔ
لا ئې په مینه کښې څیگر پاتې دے
تېر س د شپې وکړه کهٔ وکړې یقین
ستا انتظار را نه سحر پاتې دے
د انتظار ډېرې چې تېره نهٔ شې
اوس څو شپه تېره شوه سحر پاتې دے
ما څو د ستا په سر وطن ګڼلو
خبر شه اوس را نه خبر پاتې دے
نهٔ او انکار له تا په کومو سترګو
لا ئې د تن د پاسه سر پاتې دے

نهٔ د رېبار په خُلهٔ رخصت څکه شم
د یار خاطره چې خبر پاتې دے

[illegible]

سترګو دې چل چې د خندا زده کړے
سترګې زما چل د ژړا زده کړے

په لندو پلوڼو به یې څنګه څـمه
ما خو تل تګ چې د صحرا زده کړے

تن دې ونه وې په وعدو کښې راته
صره وعده کښې دې سبا زده کړے

خاطره طمع د وفا مه کړه
اشنا خو یو چل د جفا زده کړے



د ځان سینګار ولو کښې مسکې وې ما لیدې
زما د زړه په سولو کښې مسکې وې ما لیدې

پروت چې څه پرواه ستا په ګذاب نه وه صنم
زما په زړه ویشتلو کښې مسکې وې ما لیدې

شاید چې وه دریاده حیرانتیا چې هغه وخت
ائین ته په کتلو کښې مسکې وې ما لیدې

خفه یمه په دا که بنه یې ستا له سیې کړم
رقیب ته په وېلو کښې مسکې وې ما لیدې

لبان دې لکه پاڼې اننګې یې سره ګلونه
سحر چې ته په ګلو کښې مسکې وې ما لیدی

خبرې په غصه کښې کېږي هم د چا خاطره
اشنا چې په کتلو کښې مسکې وې ما لیدې

اشنا ي نن ليدهٔ تېرې وعدې را يادېږي
دا وصل کهٔ هجران دهٔ چي ګيلې را يادېږي

بس دهٔ ي ستا ارمان پهٔ زړهٔ کښې نور څهٔ دي شته
دا نهٔ چي ماته نورې مرحلې را يادېږي
منم چي فراقجن به نور سبا دا يادېږي
لهٔ ما چي اشنا لاړهٔ ماته شپې را يادېږي
کهٔ هر څو شوې ، نن يا دلره چي هېر دې تشم بنهٔ
ښځوا ي لا پهٔ زړهٔ کښې اوسېدې را يادېږي
وم دومره لېونے ستا د پرېشانو زلفو نهٔ
چي چرته خو به خاورې بادېږي را يادېږي
زما د زړهٔ ګي يادشي د مخکي نظر سره
پهٔ هيڅ نهٔ هېرېدلې هم راسې را يادېږي
دا نهٔ چي اَهو چشمه اوس ي غټې ستا يمهٔ
د ستا خمارې سترګې لا وېږې را يادېږي

بېګا چي شمع ږديه هر څهٔ هېر وهٔ د خاطر
د ستا د محفل ښکلې تماشې را يادېږي

لهٔ مصرع بې معنىٰ ده



زما د اُميدونو ورځې شپې وغزېږي
هر څو ستا د منزل کهٔ مرحلې وغزېږي

اوس چرته تر ينه لاړ شم لېونے چي کړه يار
هر ځاې کښې ي د زلفو زولنې وغزېږي

نمر مخنيه اوس دې سې لارې ماته کړه ګورګي
نظر کهٔ ستا د مخ پرې پلوشې وغزېږي

چا هسې داسې يعې چي خاطر کړو يار پُخلا
پهٔ دې د رقيبانو جنازې وغزېږي



چې ښکلې وې ، وخندېدې شونډې
خود به د سترګو خوښېدې شونډې

دا ته چې لاړې شونډو ښېغ ونه وې
بس کهٔ په تا به یادېدې شونډې

سترګو له زهٔ کهٔ قسمونه ورکړم
زړګیه ته کله پرېږدې شونډې

شول جوابونه د خاطر نه خطا
په کشمکش کښې رپېدې شونډې







پوه شومه پهٔ دې چې پهٔ ګنځل کښې څنګه ښکارې
وخانده یو ځل چې پهٔ خندل کښې څنګه ښکارې

ستا د تصور پهٔ یو جونګړه کښې اوسېږمه
تهٔ خو راته وایه پهٔ محل کښې څنګه ښکارې

څومره به پهٔ باغ کښې ته پهٔ غټو وړو ګلان ته
ګله د آشنا پهٔ سره منګل کښې څنګه ښکارې

سترګې یې پهٔ ما کښې دې چې ګورمه هر چا ته
نن راته اے شمعې پهٔ محفل کښې څنګه ښکارې

تا به پهٔ آئین کښې ځان لیدلے پهٔ یو رنګ وی
راشه د خاطر پهٔ هر غزل کښې څنګه ښکارې





اے ګله! چې ستا پټې د خندا نه سترګې لاړې
نو خود مې لیمې برېښې د ژړا نه سترګې لاړې

ښکیه! پس له دې به بې دستا به سترګو ګورم
نظر مې وهٔ اشنا، چې لاړې زمانه سترګې لاړې
هم دا دې بدرنګه شوه مه ګره ښار له راهزنانو
اے ګله! ورو وستو ورپاندې مې له تا نه سترګې لاړې
ما وې چې کهٔ ورګورې نو اوس بیا مخ پټوی
نوکونې مې ګریوان ته له حیا نه سترګې لاړې
یو بل ته په کاتهٔ شو او په نیم نیو زلزلې وې
محفل ته چې تهٔ راغلې د هر چا نه سترګې لاړې
لر راشه شمع رویه! لیمې وګوره چې څهٔ شوم
د ستا په تماشا کښې مې له ځانه سترګې لاړې

نو څهٔ شو که مرې د خاطر سترګې په تا نهٔ شوې
چې دېرې داسې وینې له دنیا نه سترګې لاړې

میاشتنۍ «قند» مردان
(غزل نمبر) جولائی، اګست ۱۹۵۹ء

کهٔ دې دا زلفې په لاس راغلې اشنا بیا به څهٔ کړې
کهٔ نهٔ عادت له دې بلا سره شم بیا به څهٔ کړې

در ته کښتے نهٔ شم حیران یم د اشنا سینګاره
تا مې چې داسې په اشنا وکړل په ما به څهٔ کړې

څو به ښېرې او دا دښنه تل ته مات کړې
چې یې پېرزو نهٔ وی دعا مخه اشنا به څهٔ کړې

چې څهٔ یې وکړل مخه یې تړل وکړل په تا خاطره
دا یه چې تاله په لاس راشی په اشنا به څهٔ کړې

Scanned and pdf copy
by
Fazal Amin

○

پرېږده خوشحالي بنه نهٔ ده بیا رانه مړېږي
کله کله غم راکوه تل چې مې یار درېږي

زهٔ دې یم لوګے پټېږدے نهٔ شې رانه شمې
خدایږو د دنیا نه پهٔ تیارو کښې بنه بنکارېږي

ماته د اشنا د وعدې مرېږ ځاې اشنا دے
اے ورېږیه نظره ته پهٔ هیڅ هم نهٔ مړېږې

ستا به د خاطر نه وی پهٔ زړهٔ کښې څهٔ تېرېږي
دومره بې پروا يې چې پهٔ مخ کښې مې تېرېږي

○

---

ے منتر لرنه او دیوان خاطر دواړو کتابونو کښې «تا» لیکلے شوے دے رېڅې خیال سیمه کړی



○

لکه مجنون غوندې ګرځم پهٔ بیابان درپسې
وایم پهٔ خُلهٔ لیلیٰ لیلیٰ څیرې ګرېوان درپسې

نهٔ شوم خبر نهٔ د وصال لهٔ خوشحالیه چرې
لکه وحشی ګرمه غمونو د هجران درپسې

نهٔ دې اشنا یم نهٔ چې بیا راته آشنا ووائې
پروا مې نشته دے پهٔ تا نهٔ ګرم خفګان درپسې

چې ته بیا نهٔ وائې پهٔ ما چې ته شیدا نهٔ يې تهٔ
کهٔ د ګمرو مې ګذار نهٔ کړو خپل ځان درپسې

پهٔ حال خبر شه چې نردې را نهٔ شې خواله زما
چرې پهٔ لاس ګرځې خاطره رقیبان درپسې

○

○

راشه اے ماهِ تابان پهٔ توره شپه کښې
یم تر زلفو پرېشان پهٔ توره شپه کښې

لهٔ تېکرو بې پروا یم ستا پهٔ عشق کښې
لکه بحر یم روان پهٔ توره شپه کښې

پهٔ خندا مې ستا قسم وی شمع بدېه
څو به کړمه داکریان پهٔ توره شپه کښې

زهٔ خاطر د ستا د زلفو نه پار نهٔ کړم
ما لیدلی دی ماران پهٔ توره شپه کښې

○



چې د سترګو دی ښکار زنې زما سترګې
چې یې نهٔ شی کړے پو ښتنې زما سترګې

زړهٔ کچکول کړمه د او ښکو پهٔ زنځیر کښې
چې در ګورم شی نمنځې زما سترګې

مرګ ژوندون دے لبِ راکوره د نرګسو
در نه غواړی جوړ بخښنې زما سترګې

دهر چا دې دیدنونه مبارک شی
وینې ستا د پېرزوینې زما سترګې

پهٔ ژړا بانده یې خو نهٔ شی چې زهٔ ژاړم
ړکې ستا د در لمسنې زما سترګې

ستا د سترګو کړی خاطر چې نهٔ در ګوری
هسې نه چې دی پارنې زما سترګې

○

○

خوړ د هرې يوې کوڅې شوې زما سترګې
چې د ستا سترګو ته غلې شوې زما سترګې

ستا منزل ته به د نېږۀ په سترګو رسم
په تلو تلو کښې مرحلې شوې زما سترګې
څۀ زوخونه پرې ډګر مر اوښکو اوړي
په ژړا د غم پخې شوې زما سترګې
چې سبا بېګا يې ستا په در کښې نيسم
خوړ د هرې يوې نامې شوې زما سترګې
بيا مې هغه خپلې سترګې خپلې نۀ کړې
چې لۀ ځانه نه په دې شوې زما سترګې
اوس په دم کښې د يار زر ځل ديدن غواړي
د اول نه د پېرې بنې شوې زما سترګې

نۀ خاطر به په ترخو نېږۀ اوس عادت کړم
چې په تا باندې خوږې شوې زما سترګې

---

مياشتنۍ «غنچه» ستمبر ۱۹۶۰ع

○

د ستا چې نۀ وينم دا تورې سترګې
په کار مې نۀ دي دا راپورې سترګې

نۀ به يې د بل سترګو ته پورته نۀ کړم
د ستا په پل مې دي نسکورې سترګې

ساقي د ستا پيمانه څۀ کومه
چې راشنا مې دي مېخورې سترګې

خاطره ژاړه لۀ هجرانه سره
په تصور کښې خړې کړې سترګې

○

څۀ وشو چې سترګې مې پۀ تا باندې خوږې شوې
چاته پوره نۀ شوې چې د ستا پۀ لور کږې شوې

ګوره دا ګریوان مې چې وحشت څنګه تار تار کړلو
نۀ شلیږي د ستا د زلفو څرنګه حلقې شوې

ما خو پوهول چې د ستا خُلۀ ډېره آسانه ده
ګرانه شوله څکه دومره خُلې چې راپسې شوې

اوس هم ستا د مینې افسانه زما پۀ شونډو ده
څو ورځې افسانې مې پۀ نړګوټي کښې ورستې شوې

سترګې د خاطر کۀ ستا پۀ سترګو تېر وتلې دي
ګوره مه دا بدې کۀ زما پۀ حقله ښې شوې

تا به کتو غل چرته خاطره د ورک شوي زړۀ
نۀ ګورې چې تا ته د اشنا سترګې بس غلې شوې



چې اشارې کړې ایسار به یم ولې
چې پښېمان یې تیار به یم ولې

پۀ یو ساعت کښې مې بیا بیا ژړوی
چې اوس ژړېږم قرار به یم ولې

دریغه چې مړ دې د ستم نه وې زۀ
چې نۀ مړ کېږم آزار به یم ولې

نور به دې څۀ وکړي بانۀ په خاطر
ټول دې پرهر کړمه ویرېږم ولې

○

اوښکې نهٔ کمېږي خوږا ماتې شوې
تا چې خندا وکړه نو ژړا نه باقي شوې

څو ګلې د اوښکو سره درغلم
دا څنګه جرګې او ننواتې شوې

څو به ګوري ستا سترګې نما سترګې
لړې دې وي خبر دے هو چې نیاتې شوې دي

تا چې د خاطر سره څهٔ کړي دي
خبر دے اشنا دا یې درته پاتې شوې

○



○

تهٔ به پهٔ زړهٔ کښې ماله څهٔ راکوې
کهٔ راکوې ماله به زړهٔ راکوې

منع به نهٔ شم ستا لهٔ دره ځنې
پهٔ دې دې نهٔ یم که څهٔ نهٔ راکوې
څهٔ لوې اختر دې د ځوانۍ تېر کړلو
تهٔ به لا سونه ماته ښهٔ راکوې
داسې چل وکړه چې ډېر و دود ډېرم
سبا به ښکلیه یو لمبه راکړه
دا خوشحالي به ماته څوک راکوي
چې ټول غمونه راله تهٔ راکوې
چې پرونند اوکوم دې کړم نو ماله به شوه
اوس خو به هرڅهٔ پهٔ ګالهٔ راکوې

ضد لهٔ خاطره سره مهٔ کوه تهٔ
کهٔ یې اوان راله پهٔ څلهٔ راکوې

○



تهٔ ما ستا بلې یو پهٔ سله نهٔ یې
دا تهٔ زما پهٔ وینا څله نهٔ یې

کهٔ څوک خپل ځان درته ذرې ذرې کا
خپله کوې تهٔ د چا خپله نهٔ یې

دا تهٔ خو چرته یې چې نهٔ یې نهٔ یې
هر وخت زما سره تهٔ څله نهٔ یې

خاطر به هم پهٔ تا اعتبار کوي لا
تهٔ خو هم هغه یې څهٔ بله نهٔ یې





هر څوک کهٔ چې د زړهٔ قرار وړلو له راغي
پرهېږم ولې نه چې قتلولو له راغي

بلبل کړې د ګل وصف کهٔ بهار وي کهٔ خزان
بورا تهٔ خو یې بس یو ښکلولو له راغي

غمونه د اشنا زهٔ اوس پهٔ هېڅ نهٔ هېروم
اے غمه د دنیا کهٔ هېرولو له راغي

ارمانه د اشنا شه د اشنا سره مېشته
چې زړهٔ ته د خاطر ازارولو له راغي



داسې راته ګورې لکه ته چې راته ګورې
نیغ مې لهٔ زړګي وځي کاږهٔ چې راته ګورې

کله چې د زلفو ورېځ لرې کړې لهٔ مخه
شي دې پلوشې ښکلې بانهٔ چې راته ګورې

هغه وخت لږ وېر وي ته چې مخ راځنې پټ کړې
داسې معلومېږي لکه بڼهٔ چې راته ګورې

ته زما د زړهٔ نه د خپل حُسن تپوس وکړه
زهٔ به درته ووایمه څهٔ چې راته ګورې

نن خو مې خاطر وکړه چې مهٔ راته راګوره
زهٔ درته کتے نهٔ شمه ته چې راته ګورې

# سندرې

اوس را نه هيڅ نهٔ شي خطا ده
لهٔ مرغهٔ مرغهٔ وو تمه
ګرانه اشنا دا يې سزا ده
نهٔ چې پهٔ تا مئينېدمه

نهٔ در نه څنګه هېرېدمه — خپلو وعدو نه وشرمېږه
تا چې خندل نهٔ ژړېدمه — لهٔ هغو شپو نه وشرمېږه
هېره زما تو له دنيا ده
شام و سحر دې يادومه
ګرانه اشنا دا يې سزا ده
نهٔ چې پهٔ تا مئينېدمه

غږ پهٔ غږ نهٔ وړې صنمه — چې وي ژوندي له قبره راشي
درته پهٔ ژړهٔ کښې به يې سانمه — پرېږده چې مو ښهٔ پهٔ جفا شي
زما پهٔ سترګو کښې حيا ده
نهٔ يې پهٔ څهٔ درواږومه
ګرانه اشنا دا يې سزا ده
نهٔ چې پهٔ تا مئينېدمه



تل به پهٔ مرچا داسې کيږي — پهٔ داسې خلقو چې اعتبار کا
لهٔ خپله ځانه چې خبرېږي نو — لهٔ ګمنګو به يې ګذار کا
د ښکلو مينه بې وفا ده
نهٔ به يې څهٔ درته ستايمه
ګرانه اشنا دا يې سزا ده
نهٔ چې پهٔ تا مئينېدمه

خاطر خرمهٔ وے درکړلي — اوس يې ژوندون اختيار ور دے
هغه چې تا ورته خندلي — نن يې د نورو خندا تور دے
زما د زړهٔ خوښه ژړا ده
ځکه يې نهٔ قرارومه
ګرانه اشنا دا يې سزا ده
نهٔ چې پهٔ تا مئينېدمه



ــ د دواړو ځايه د (لهٔ) پهٔ ځاې (د) ليکلې شوې دے

چې مې سترګې دیدن د اشنا نهٔ کا
زړهٔ مې غم د نورې دُنیا نهٔ کا

نهٔ به غنهٔ کړم ګیریبان چې یار راکړي ګُل
پهٔ زخمونو ملهم به کیږدي د ګُوګل

هسې هسې مې یار خندا نهٔ کا
زړهٔ مې غم د نورې دنیا نهٔ کا

ایله زُلفې یې اوس غُنچې ته جوړې شرې
دواړه شونډې یې خند بدو ته جوړې شرې

مل به خنګه زما سودا نهٔ کا
زړهٔ مې غم د نورې دنیا نهٔ کا

د ستامخ ته زما نظر ورسېدو
هغه اور مې سم تل تر ځیګر ورسېدٔ

بې لهٔ سوزه خو ځیځوک ژړا نهٔ کا
زړهٔ مې غم د نورې دُنیا نهٔ کا

اے خاطرهٔ ګیلې د خپل یاره مهٔ کړه
ته طمع د دل آزاره مهٔ کړه

اے شباب خاطر د هیڅا نهٔ کا
زړهٔ مې غم د نورې دُنیا نهٔ کا





شوې د زړهٔ سترګې سپینې اشنا تا پسې
را شه کهٔ یې وینې اشنا تا پسې

لبا نو ستا نهٔ د بنامار پهٔ شان خوږے یمه
نهٔ دې د سترګو پهٔ بڼو باندې ویشتلے یمه
ځي مې لهٔ خُلې نه تورې وینې اشنا تا پسې
راشه کهٔ یې وینې اشنا تا پسې

پهٔ دې هجران کښې به تر څو پورې کړېږمه زهٔ
شام او سحر لکه ماشوم غوندې ژړېږمه زهٔ
او ښکې مې ځي پهٔ مخ رنګینې اشنا تا پسې
راشه کهٔ یې وینې اشنا تا پسې

چې ته کوې پهٔ ما ظلمونه راته پېغور دے صنمه
خاطر کوې در ته سوالونه پهٔ زړهٔ یې زور دے صنمه
وهم رباب لکه د مینې اشنا تا پسې
راشه کهٔ یې وینې آشنا تا پسې



نهٔ ومه خبره نهٔ، تاچې نرېږهٔ بابُلبلے دے
تا ووې ربهار ته پس لهٔ دې به څوراځي
خبر دے کهٔ تش تورې دې پرون نرګسے شپلےدۀ
خیال ې وۀ سنګار ته پس لهٔ دې به څوراځي
ونبا یه څُنګر راته     اوس د نرګی سر راته
وایه د بهونغشو پهٔ کوم کوم ځاې ویشتلے دے
لاس کښې آئینه ې وه     کړې چې کینه ې وه
ماکتل رخسار ته پس لهٔ دې به څو راځي
څنګه مرې د رشمه     پهٔ حال دې چې خبرشمه
لاس کښې دې د رقیب راته ډک تورپک نیولے دے
یو ځلې د رغلے وم     ډېر دې زغلولے وم
غلے وم دیدار ته پس لهٔ دې به څو راځي
ماچې کوم ستم کړے     اوس ې پهٔ تاکم کړے
دا د ځوانئ ولد پهٔ ما نن سبا راغلے دے
شوخاطر غلام د ستا     کړې به تل سلام د ستا
پرې یې بنده د دربار ته پس لهٔ دې به څو راځي



نن خو را ته مهٔ وایه چې نا     تر سبا
سود ې ساقي نهٔ شي پهٔ مینا     تر سبا
وایه اشنا راته، تهٔ زما تعبیر نهٔ یې
وی چې تل پهٔ خیال کښې ې تهٔ صفه تصویر نهٔ یې
بله راته بنکاری دا دُنیا     تر سبا
سود ې ساقي نهٔ شي پهٔ مینا     تر سبا
راکړه ساقي داسې مئ چې شي زما او ستا نشه
هم پرې د چوپتیا نشه هم پرې د دنیا نشه
جام دلبر راکړه پهٔ بیا بیا     تر سبا
سود ې ساقي نهٔ شي پهٔ مینا     تر سبا
نن خو دې راجمع څهٔ پهٔ مشُر کښې کیفونه دی
سترګو پیمانو کښې دې رنګ پهٔ رنګ ستونه دی
ګلې د خاطر شه پهٔ ربنتیا     تر سبا
سود ې ساقي نهٔ شي پهٔ مینا     تر سبا



طلب کړم صنم چم په چم
لوند مې ګریوان دے غاڼې مې نم

مینه وفا دې نشته
په چا پروا دې نشته
وېره له چا دې نشته

کوه ستم طلب کړم صنم

رنګ مې تک تور صنمه
سوے په اور صنمه
کومه شور صنمه

وکړه کرم طلب کړم صنم

مینه بهار دے دستا
چمن ګلزار دے دستا
خاطر مالیار دے دستا

د ګل په چم طلب کړم صنم



ے منزل کېښدار دیوان کښې مصرع داسې ده ـ چم په چم طلب کړم صنم



چې سترګې نه وباسي، زما او ستا نه
راځه چې درومو دواړه، له دې دنیا نه

زما او ستا دلته څه دي، خو یوه مینه
دا خو هر چرته کېږي، چې داسې وینه
ځان له به جوړ کړو بوستان، په بیابانه
راځه چې درومو دواړه، له دې دنیا نه

خوبه په وېره سره، دیدن په غلا کړو
په انتظار کښې سره، بېګا سبا کړو
ته شه له زلفو تېره، نه له ګریوانه
راځه چې درومو دواړه، له دې دنیا نه

دا یک دمینې زړونه، به دواړه یوسو
څه چې ځنګل ته لاړ شو، هلته به اوسو
یو دې چار ګل په پوره بل دې پېزوانه
راځه چې درومو دواړه له دې دنیا نه

دا مې په خوا خاطر کښې، نه وو صنمه
چې زه خاطر به شمه، په خاطر جمعه
څکه چې ستا له غمه، دېر یم پرېشانه
راځه چې درومو دواړه، له دې دنیا نه



ے منزل کېښدار دیوان کښې (د) دے

د سې نه کال ته د پس غمونه
لاداسې ژوندنه مرګ بنه دے راد ې شینه
الله دې خیر کړي

ستا د ماښو فریادونه
هېر به ې نهٔ شي
لکه د زانې قطارونه
هېر به ې نهٔ شي
پاس په اسمان کښې جهانونو سره ځینه
الله دې خیر کړي

د پښتنو فقیره ژوندده
خندګه به تېر شي
تېرخو به شي په لوږه تنده
خندګه به تېر شي
په مصیبت به دې خوک سر ته رسوینه
الله دې خیر کړي

نوم د پښتو راځني هېرشي
څوک ې یادېږي
غم د هغوی را سره پېرشي
څوک ې یادېږي
څوک چې د قام او د اولس خدمت کوینه
الله دې خیر کړي

خاطره هغه خلق ستا یه
په خپل کتاب کښې
تل په بار بار دغسې وایه
په خپل کتاب کښې
حاجي سرونه په وطن ورکړي دینه
الله دې خیر کړي



شوګیرې توبلې پۀ سبا سبا کېږې تېرې شولې
پرېږده چې وژاړم پۀ چغو چغو
ستا د بنا ښسته سترګو د پاره    ګلونه مانه ښکلیه یاره
څومره لبې مې پۀ زېړګوتي باندې تېرې شولې
پرېږده چې وژاړم پۀ چغو چغو
د خدای د پاره بس ګړاشه    کۀ مرور یې راځلاشه
ستا د راتلو پۀ انتظار یې سترګې سترې شولې
پرېږده چې وژاړم پۀ چغو چغو
دا تۀ چې لاړې د بل چا شوې    زما د زړۀ څخۍ جدا شوې
زما دا سترې شوګیرې دې تېرې هېرې شولې
پرېږده چې وژاړم پۀ چغو چغو
خاطره زه ځان ته حېرانه یمه    کۀ لېوا ګورې بس روانه یمه
د پېغلتوب ملګرې توبلې دا نه ګېرېږې شولې
پرېږده چې وژاړم پۀ چغو چغو



د قافیه درسته نۀ ده





واوره صنم زړۀ مې نۀ شولۀ تا نه
ویلې نۀ شم زۀ څۀ لۀ حیا نه

دغه ستا د مینې درد و نۀ ښۀ دی پۀ ما
زړۀ مې د ستا د پاره واخلي وی دې پۀ ما
واوره صنم

پۀ کومه لاره ښکلیه چې قدمونه کېږدې
زړۀ به مینې پۀ زړۀ باندې داغونه کېږدې
واوره صنم

زړۀ مې لۀ خپله کوره تېښتې چې راشې صنم
خاطر د ګران دې پۀ ما چې پۀ خندا شی صنم
واوره صنم



پهٔ تش دیدن باندې یې نو نو مشغولیږه
څو مهٔ خفه کیږه بله ورځ به راشم

لهٔ هرچا پټه پټه ستا یارانه به کړمه
تا له چې درشمه نهٔ څهٔ بهانه به کړمه
پهٔ انتظار کښې یې لهٔ ځانه سره ژړېږه
څو مهٔ خفه کیږه بله ورځ به راشم

کړم دا وعده درسره چې تا به هېر نهٔ کړمه
یو ساعت یې لهٔ تا به پهٔ نور څهٔ تېر نهٔ کړمه
پهٔ دې سودا یې قدهٔ کیږه راویښېږه
څو مهٔ خفه کیږه بله ورځ به راشم

نښه د ستا او زما ، ماهِ تابان شو سره
بل یې کاروان د ستورو پهٔ کهکشان شو سره
د سبائی د خیال خوبونو کښې زنګیږه
څو مهٔ خفه کیږه بله ورځ به راشم

ځان ته دا ټوله دُنیا خاطره ما وګڼه
پهٔ کښې یې مخ او زُلفې بیګا سبا وګڼه
د زړهٔ پهٔ مینه یې پهٔ سترګو کښې اوسېږه
څو مهٔ خفه کیږه بله ورځ به راشم



له ګه په دیوان ارمغان لمنه کښې (د) دے



تهٔ چې پهٔ مرګ زما رضا یې
ما ته قبوله دلربا یې
ستا رضا ده چې داسې ژړېږم
پهٔ عالم کښې داسې ګرځېږم
پهٔ محبت یې نا رضا یې
ما ته قبوله دلربا یې

عاشقي وه پیدا لهٔ اوره
لږ زما سوی زړهٔ ته وګوره
جوړ پهٔ معنیٰ قیمت بها یې
ما ته قبوله دلربا یې

خاطر ته ګوره داسې حیران دے
پهٔ محبت کښې ستا بندیوان دے
یې کبرجنه یې ربا یې
ما ته قبوله دلربا یې



خوښه دې شوه وله زما داشنا مينه
اے زړه غمګينه

اے زړهٔ ذرې شه
خاورې ايرې شه
څې دستګو د زړګی وينه
اے زړهٔ غمګينه

راشه کهٔ وينې
د زړګی وينې
د يار پهٔ غم کښې چې دوی راځينه
اے زړهٔ غمګينه

خاطره داشپې
تا نه جدا شپې
جوړه د وصال شپې د يار که دينه
اے زړهٔ غمګينه



اوس به وطن د سرو ګلونو ډک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو
څهٔ به د ښکلو نګهتونو ډک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو
بلبله ستا د تماشو ورځې دی
راشه هم دا دې د نغمو ورځې دی
نه چې لا هغه د ازغو ورځې دی
ځان کړه پهٔ خود اوس د ګلو ورځې دي
راشه چې ژوند دې د کېفونو ډک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو
اوس به تول بوټي سره ځان وښائي
څوک به کلي، څوک به ګلان وښائي
لاله به هم څيرې ګريوان وښائي
هم به بلبل شور و فغان وښائي
اوس به ښاخونه د رنګونو ډک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو

جونه به ولونه د وربل جوړوي
په کښې ښايونه به د ګل جوړوي
سرو سرو غنچو نه به منګل جوړوي
په آئينو کښې به کاکل جوړوي
دغه جهان به لاړ نازونو پک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو

ښکلي څلي به په شملو کښې بندي ګل
اوس خو به جونه په ګمڅو کښې بندي ګل
ډېر ارمانونه به په زړو کښې بندي ګل
څوک به د زړه په پرهرو کښې بندي ګل
دامې به زړونه په داغونو پک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو

زه کوم ژړا د چا خندا نه وينم
چې مې ليده هغه رڼا نه وينم
ګل د رخسار چې د اشنا نه وينم
زه نور ګلونه د دنيا نه وينم

څوک له جهان له ديدنونو پک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو

د ارمانونو لوے جهان رنړوي
زړه په ګوګل کښې مې جانان رنړوي
د مينې ګل را نه هجران رنړوي
نه کړي خاطر دغه بوستان رنړوي
د مخ کتاب دې د رانونو پک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو

څه به د ښکلو نګهتونو پک شي
راغے سپرلے وار د خزان تېر شو



زړګي مې غواړي شمع رڼه سوزېدل
راشه يو ځل

ارمان مې دا دے که پوره شي
د رنځ دارو مې د اشنا سره لېدل
راشه يو ځل

څو به شوګير کړم راته وايه
واړه خوبونه راځني وتښتېدل
راشه يو ځل

که ديدن کړې تلوار راوکړه
همزولې راغلې خوروي مې تور وربل
راشه يو ځل

عاشقان ګوره حال يې څه شو
لکه پتنګ چې په لمبو وسوزېدل
راشه يو ځل

سوال د خاطر منظور کړه ياره
جفا دې پرېږده د وفا وکړه کتل
راشه يو ځل





نن دې وربل په کوم پلو دے
بيا به سوزېږمه زه   اور راته بل دے

د ژوند کاروان مې دے د غم خپو ګرد ورکيږي
واوره فرياد مې د جرس په اوازونو کښې
تلے دې پل په کوم پلو دے
بيا به سوزېږمه زه اور راته بل دے

ترڅو د هجر دا اوږدې شپې او تيارې به وينم
سبا د وصل به وی لرې که نږدې به وينم
د ستا منزل په کوم پلو دے
بيا به سوزېږمه زه   اور راته بل دے

خاطره نن دې که لږ سم راته کتلي وے
واړه بنا پسته به دې له نږدې وتلي وے
د کتو چل په کوم پلو دے
بيا به سوزېږمه زه   اور راته بل دے



ستړګې نیولې دی ما ستا په رخسار کښې
او به او به شول توری څې په خُمبار کښې
ما چې لیدلے ، ستا پښو کښې پل دے
غم د وحشت ، وحشت راسره مل دے
اوس مشغولا کړم په دغه لار کښې
او به او به شول توری څې په خُمبار کښې
نهٔ در رسیږی نهٔ درته غږ شی
نهٔ رانه خُمب شی نهٔ رانه سږ شی
داغهٔ ژوندون دے په انتظار کښې
او به او به شول توری، څې په خُمبار کښې
یار یې لهٔ بنګلو سره روان دے
دې تماشې ته خاطر حیران دے
ګله سپوږمۍ وی، ستوری قطار کښې
او به او به شول توری څې په خُمبار کښې



زما په طمع به کړې تېرے وختونه
زهٔ دې یاره نهٔ یم دومره وزګاره نهٔ یم
چې درته کړم
ما ته را یاد نهٔ دی څوک زهٔ په ځان کښې یمه
په نړۍ غم نهٔ لرم په خوشحالۍ کښې یمه
زهٔ لیونے یم چې کړم دومره فکرونه
زهٔ دې یاره نهٔ یم دومره وزګاره نهٔ یم
چې درته کړم
لیونی نهٔ یمه چې د خپه سودا کړمه
په تا دې اور بلیږی زهٔ څهٔ پروا کړمه ۱
چې بیا مسرورې را ته نهٔ کا پېغورونه
زهٔ دې یاره نهٔ یم دومره وزګاره نهٔ یم
چې درته کړم

---

۱ مترنم نه او ویلنی کښې د ډیر مصرع داسې ده :
لیونی نهٔ یم چې دا سودا کړم — په تا دې اور بلیږی زهٔ څهٔ پروا کړم

دومره وزګاره نه یم چې خپل ځان وه وینم
چې په ائین کښې ګورم آئین پرېشان وه وینم
جانانه ډېر درپسې کړمه ارمانونه
زه دې یاره نه یم دومره وزګاره نه یم
چې درته ګورم

زه چې ګورم له ځمه مئین سوزېدلې په ما
تکه داور په شان سېځکار ځلېدلې زما
خاطره مه راځه بلېدلې سره اوروونه
زه دې یاره نه یم دومره وزګاره نه یم
چې درته ګورم



تودې ستړګې دې اشارې کا سرې شرندې لبې کا
زړه کیږه راته وایه چې زه کوم طرف ته لاړ شم

کله بانړه راته انغی کا پېښې دګلو انګی کا
چې مُسکی شي بیا ستړګې مرې کا سرې شرندې لبې کا
زړه کیږه راته وایه چې زه کوم طرف ته لاړ شم

بیا چې ارمان د ډېرو نه وی کړه چې ځه دې تن په زړوی
چې مې خلق ټول تماشې کا سرې شرندې لبې کا
زړه کیږه راته وایه چې زه کوم طرف ته لاړ شم

د انتظار په توره شپه کښې دا دې خاطره په تیاره کښې
خپلې او ښکې دې ځان ته ډېرې کا سرې شرندې لبې کا
زړه کیږه راته وایه چې زه کوم طرف ته لاړ شم



۱ متن ترلونه او دیوان کښې (تن) نشته
۲ متن ترلونه کښې دا بند نشته

چې ته سبا به ې ته ځا په تا پسې کړه
رايادې هغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

دلبره بندۀ را ته معلوم يې
مسې خونه چې ته ماشوم يې
ګله زهير په ما مظلوم يې
چې نه پوهيږې له هغو سره وعدې کړه
رايادې هغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

چې ستا د مخ په تماشا وم
دغه وصال وه که جدا وم
نه يم خبر په څه سودا وم
چې تماشا مې ستا د مخ د تماشې کړه
رايادې هغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

چې په غمونو کښې دې ګير کړم
اوس دې دلبره ګله هېر کړم
که دې په ګل په ديدن سير کړم



ګڼې له غمه به دې سر شم بيا مړې کړه
رايادې هغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

چې د اغيارو زما يار شې
بس اوس مې قتل ته تيار شې
اشنا زما ځنې وېزار شې
پرعا مې نشته خو په خپله مې ذبې کړه
رايادې هغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

ښکلګه قبول دغه بېلتون کړم
څه بې له تا په دې ژوندون کړم
دلبره مينې دې مجنون کړم
جانانه اوس را پورې ټوقې مسخرې کړه
رايادې دغه شپې کړه
زما ناترسه ياره

دستا چې نه يمه د چا يم
راغلې دايم په خندا يم
مرود نه يمه پخلا يم
خاطره بيا که مرود شوم نو ګيلې کړه
رايادې هغه شپې کړه زما ناترسه ياره

~

تېر به د ستا د حسن وار شي يارە زما
اخر خزان به دې بهار شي يارە زما

چې نهٔ را درومې اشنا نو وعدې څه کوې
هغه پرون دې څهٔ وې ن چې بيا به کوې
زما يقين ستا په اقرار شي يارە زما
اخر خزان به دې بهار شي يارە زما

ستړګې مې بې له تا نه د چا په لور نهٔ ګورې
د ستا له مخه ځنې مخ نه نور نهٔ ګورې
مرې به کله په ديدار شي يارە زما
اخر خزان به دې بهار شي يارە زما

زهٔ د بل چا د مينې اشنا څهٔ طمعه نهٔ کړم
زهٔ به له نورو سره ستا مينه سمه نهٔ کړم
په ما خاطر دې کهٔ اعتبار شي يارە زما
اخر خزان به دې بهار شي يارە زما



له منزلونه او ديوانه کبې (چې) دے

چې نهٔ را درومې يارە تهٔ ، منع دې کړه ياد زما
نهٔ شومه پوه په خپل ژوندون کړو عمر دې برباد زما

ان د يو ساعت مهمان د لې
واوره زما يو خو ګيلې
تېر به شي ستا شباب ، سر دې نهٔ کړو مراد زما
نهٔ شومه پوه په خپل ژوندون ، کړو عمر دې برباد زما

چا ته بنکاره کړم خپل ځيګر
نهٔ کړې پروا ې پرې دلبر
نورې دې خوک چې بې واورې دغه فرياد زما
نهٔ شومه پوه په خپل ژوندون ، کړو عمر دې برباد زما

کهٔ بنهٔ دې شي په سر زما
وي دې پيشکش دلبر زما
وائي خاطر شه نار له تا ، نشته باقي جائيداد زما
نهٔ شومه پوه په خپل ژوندون کړو عمر دې برباد زما



زهٔ جهان څهٔ کړم چې نمر مخیه یاره تا ووینم
ښکله دنیا ووینم        ښکله دنیا ووینم

ستا د کاکُل په تورو شپو پورې لاشپې څهٔ دی
ستا د سرو شونډو انګو پورې غنچې څهٔ دی
دې تماشه مې د ژړا چې دې خندا ووینم
ښکله دنیا ووینم        ښکله دنیا ووینم

دستا په مینه کښې د خلقو خندنے خوښ یم
خود خپل عقل نه وزګار شم لېونے خوښ یم
راسره غم د لېونو شی چې صحرا ووینم
ښکله دنیا ووینم        ښکله دنیا ووینم

ګُله چې ما خاطر ته یاد شې ټول جهان ګل شی
لهٔ ډېره هجره ضریرو ګُل مې د چشمان ګل شی
خدای خبر بیا چې زهٔ به ستورے د سبا ووینم
ښکله دنیا ووینم        ښکله دنیا ووینم







د قام ځلمو ستړګې مو پورته کړئ خپل ځان وګورئ
چرته کښې ودرسېدهٔ ، وګورئ جهان وګورئ

دقام ځلمو زمونږ همه دغه د ختو ورځې دی
دا مو د ژوند د بنهٔ کېدو د خوشحالو ورځې دی

د نمر په څېرې خپل طاقت په ټول جهان خور کړئ
په خپل همت هر چرته نوم د پاکستان خور کړئ

شا ته نور مهٔ ګورئ په وړاندې خپل قدم کېږدئ
په وړاندو لارو باندې مهٔ څئ قدم سم کېږدئ

لهٔ مخې لرې کړئ ازغی ځان ته ګلونه کېږدئ
شی چې اغیار در ته حېران هلته کښې پلونه کېږدئ

مونږ له چې مخې له راغلی وار خطا تلی دی
ځلمو زمونږه څنې ډېر ځلی په شا تلی دی

تاسو هم واورئ چې پېغور ته نظر تېر نهٔ شي
د پاکستان ځلمو مېدان کښې مو سر تېر نهٔ شي

د مشرانو تل ځلمو نصیحتونه نهٔ وي
دا مو دے وخت د ترقۍ تل دا وختونه نهٔ وي

ملا مو د قام خدمت ته وتړئ چې سیال شئ پکښې
دا تنګي لنډې کړئ اوارې چې خوشحال شئ پکښې

چې ننې ورنهٔ کړئ ځلمو بیا به یې کله وکړئ
د خپل وطن خدمت ته پور ته شئ په خپله یې وکړئ

یو بل ته مهٔ ګورئ ، لهٔ ځان هر یو مالیار جوړ کړئ
د پاکستان د هر یو کوټ ځنې ګلزار جوړ کړئ





د دښمن په خونه تندر د اسمان جوړ شي
چې پاکستان جوړ شي
شان و شوکت دے زمونږ
جاه و حشمت دے زمونږ
د قربانۍ په ډېرو ویښو د امکان جوړ شي
چې پاکستان جوړ شي
دا دړکې مهٔ کوه
هسې دړکې مهٔ کوه
زړهٔ د فولادو نه د هر یو مسلمان جوړ شي
چې پاکستان جوړ شي
غم د بلا نهٔ کوو
د چا پروا نهٔ کوو
مقابلې ته د دښمن زمونږ یو ځان جوړ شي
چې پاکستان جوړ شي
مونږ د خپل کور کړو فکر
هم د خپل ودود کړو فکر
فکر مو دا دے چې کشمیر کښې هندوستان جوړ شي
چې پاکستان جوړ شي

خانخکي په شان وو اول
حبوان پر پښان وو اول
اول وو خانخکے اوس د دریاب ترې بې پایان جوړ شو
چې پاکستان جوړ شو
هر امتحان تــه ولاړ !
دغر په شانته ولاړ
وائي خاطر چې کلک په شانې د سندان جوړ شو
چې پاکستان جوړ شو

☆

ستا د هلال ستورے مدام اختر دے زموږ
د ستا مثال ستورے بنکاری نظر دے زموږ
د ستا د اقبال ستورے سر او بصر دے زموږ

تل ځلیږي په تا چې یې روښان وطنه
د پاکستان وطنه

